# خوشحال خټک څه وايي؟

لیکوونکی

عبدالرؤف «بېنوا»


دافغان په ننګ مې وتړله توره

ننګيالی دزمانې خوشحال خټک يم

# خوشحال خټک څه وايي؟

ليکونکی

عبدالرؤف "بېنوا"

۱۳۲۹

د کابل عمومي مطبعه

# یادونه

دوه کاله دمخه مادا کتاب دیوه حساس ملګری پهشخصی پیسو په هندوستان کیچاپ کړی و، هغهوخت چهدا کتاب دپاکستان له لاری افغانستان ته راتی، پاکستانی حکومت صرف پهدې جرم چه په دې کتاب کی دخوشحال خان لهخولې پښتنو ته دپښتنو لیه درس ورکړه شوی دی دبینالاقوامی ترانزیت داصولو برخلاف ئې ددې کتاب دوه ایم زره جلدونه ضبط کړل اولکه دپښتنولیه زړو دښمنانو چه خوشحال خان په ژوند بندی کړی و، دې دپښتنولیه نویو غلیمانو دده افکار پهزندان کیواچول، مګر پښتو اوپښتنولیحقدی اوحق څوك بندی کولای نشی، نوځکه پښتو تولنه غواړیچه دخوشحالخان دادپښتنولیه درس بیاچاپ اونشر کړی. دا کتاب بههم په کابل مجله کی پرله پسې چاپیږی او هم به ځانته نشرشی. (بینوا)

بسم الله الرحمن الرحيم

# پښتنو ته وایم

زه دا کتاب د پښتنو د ویښوالی د پاره لیکم، او غواړم هغه ارمانونه چه د دوی د سعادت د پاره د پښتنو لوی پیاوړی شاعر او د پښتنو ملی قائد خوشحال خان خټک ګورته له ځانه سره وړی دی، پښتنو ته و اوروم لکه دی چه په خپله وائی:

پښتانه چه بې ننګی کا څوک ئې څه کا
ګورستان لره به درومو له ارمانه

ګوندی وی چه پښتنو کښې شنوا غوږونه او حساس ماغزه پیدا شی او د دې درد ناکو چیغو په اثر ټول پښتانه له درانه خوبه را ویښ شی.

زه پښتنو ورونو ته کومه افسانه نه وایم، او نه د دوی د نیکونو پخوانی کارنامې او زاړه افتخارات ورته شمېرم، بلکه زه د دوی د پښتنی ژوند هغو نواقصو ته ملتفت کوم چه خوشحال خان خټک د پښتنو د ملی مشر په حیث څو سوه کاله د مخه ورګ کړی وو، او پښتنو ته ئې د هغو د اصلاح چیغې کړی وې او دې نواقصو تر اوسه هم د دوی پښتنواله نیمګړې ساتلې ده او له بده مرغه ئې د دوی د قومی وحدت رسی شلولې ده.

پښتانه به ما و بښی که زه له دوی سره د خوشحال خان له خولې سپینې او رښتیا خبرې وکړم، ځکه چه د پښتنوالی یو مهم رکن چه متأسفانه اوس ئې ډېر لږ مراعات کېږی رښتیا ویل دی، په خپله خوشحال خان وائی:

ځوان وم دایم زوړ شوم په رښتیا رښتیا خبرو
عالم د ځان دښمن کړم که دا عیب وی هم دی وی

بله داچه زمونږ عوام پښتانه لا تر اوسه د پیل په غوږ کښې ویده وساتلی شي

او هر ته ئې د افتخاراتو او بې ځایه غرور «ملا» شو بله شی پښتانه با یه یو شی

چه د وی په ناقا بل تولو قومو مرو سته بانه فودی او د دنیا په هیچ اولس کښې

دومره بدبختی نشته لکه نن چه د پښتنو په اولس کښې لیدلې کېږي .

نو که پښتانه عوام دی چه په دې اوسنی عصر کښې خپل ژوندون ژوندیء وساتی

او یا خاوند د دنیا د ژوند په قومونو په صف کښې ودرېږي نو دی ته ضرور مهم

مهم کارونه کول دی او هغه د ژوندون وظیفی چه ئې دوی خدای ورته ورکړې دي

نه کوی که اوس هم زاویه نشی او هم هغسی د غفلت په خوب ویده وی شك

نشته چه ژر به د هستی له کتابه د نیستی کندی ته پر یوزی او نور به ئې بیا نوم

هم څوك وانه وري .　　　　( عبدالرؤف بېنوا )

# اهدأ

د پښتنه نوی نسل ته

چه

د خوشحال بابا نیمگړی

ارمانونه‌به‌دوی پوره کوی!

د افغان په ننګ مې وتړله توره

ننګيالی د زمانې خوشحال خټک يم

نه وو، خوشحال خان خټک چه یو هوښیار مشر او بیا قومی حساس شاعر دی
د پښتنو الی دا مهم کن تر هر څه د پښتنو د پاره لازم او ضرور ګڼي، له پښتون
په ننګ پندنه وی د هغه ژوند ژوند نه بولي، وایی:

ننګیالی د ننګ د پاره　　　په هر څه لګوی اور
چه په نام و ننګ اړ نه وی　　　که تلژوی مخ ئې تور
سر په دارلګ شوی ښه دی　　　نه لاك شوی په پیغور

خوشحال خان یوازی د پښتنو د دنیا د پاره ننګ ضروری نه ګڼي، بلکه د ټول
جهان بنسټ او اساس په ننګه او شرم تینګ بولي، که دا نه وی له پستی
او بې ننګی ځخه به د ژوندون شیرازې سستې او دنیا به اړ نګه شي، دی وایی:

جهان شرم نام و ننګ دی
که دا نه وی جهان اړ نګ دی

بلکه خوشحال خان هغه خولګ چه ننګ نه لری له سره نر نه بولي، او وایی
چه بې ننګه سړی په معنا کی یوه بې ننګه ارتینه ده:

چه د ننګ په چار و نر نه وی خوشحاله!
که ئې نر وینې په سترګو هم ماده دی

هر پښتون ته وصیت کوی، چه په هیڅ وخت باید پښتني ننګ ته شا
ته کړی او یو ننګیالی پښتون شي نو وایی:

خو دی توان توفیق رسیږی ییرون مشه
په هر دم د پښتا نه له ننګه و نیا مه

داخو د خوشحال خان وصیت ټولو پښتنو ته و، مګر پخپله خوشحال خان
څه کول؟ خوشحال خان څه عادی پښتون نه ؤ، چه عادی فکرونه ئی لوړه
او یا ئې پښتني ننګه یوازې د "به کوه بدمه کره!" مفهوم باله، د هغه
سره د پښتنو د ملی ژوندون او ځکه چه ده کتله چه د هغه ملو له په امپراطوری پهڅ را

جوش او خروش کښې وه ، او هر ګله ئې د پښتو نخوا غرونه او د پښتنو ملي ژوند تهديداوه ، او پښتانه ئې ورځ ، ورو ، دې ته را ګازل چه دا تکيا تو او پنجا بيا توسره ګډ او په هغو کښې محوشي او خپل ملي شته وا لي با يلی ، تو خوشحال خان تر هرې پښتني ننګې دمخه خپل ځان ته ددې پښتني ننګې توسره ګول تا ګڼلی او لازم ګڼلی وه چه پښتانه و يښ ګړی او دوی خپل تيت او پاشان ژوند ته ملتفت او په دې خبره ئې پوه کړی چه پښتنو ته يوقومی تشکيل لازم دی ، د پښتنو خاوره بايد د بل هيواد ضميمه نشي او د پښتنا نه د الوی قوم د بل چاتر حکم لاندې ندی ، رښتيا هم دا ده چه په هغه وخت کښې دا فکر زره خوړا او په پښتني ننګه بلله کېده . تو ځکه خوشحال خان دې او دو ا فکارو نا قراره کړی و ، او ددې افکارو د عملی ګولو د پار سرګردانه ګر زيده او غوښته ئې چه پښتون قوم بيدار او پخپلو افکارو پوه ګړی ، دی وائی :

| | |
|---|---|
| چه نه لری ننګونه | وئی مه وينې رنګونه |
| دا د ننګ د پاره ګرزم | په دا هسې ګړ نګونه |
| سدرحمت را باندې نبا يی | په دا هسې آ هنګونه |

مګر خوشحال خان بې تجربې او ازم سړی نه و ، بلکه يو خ سياس و ، په کار کښې ئې تلوار نه نه ګاڼه ، د خپلې مفکورې ، د عملی ګولو د پاره ئې ډېر وخت ته ضرورت و ، تو ځکه ئې د پلار د مرګه ورو سته چه دی د قوم مشر شو د هند د مغولي پاچا شاه جهان اطاعت سر و نه غړ اوه ، خو سره ددې هم پښتنو پخپل منځ کښې پوره استقلال درلود او خوشحال خان د پښتنو د پاره هيڅ وخت د بل چا مرئې توب نه خو ښاوه او نه ئې مانه .

شاه جهان هم د پښتنو خاموشي غنيمت ګڼله د پښتنو په داخلی آزادی ئې غرض نه درلود ، مګر په (١٠٦٩) هجری ګال چه اورنګ زيب عالمګير د شاه جهان

د قابله زوی ، چه خپل پلار ئې د خپل ذاتي غرض دپاره بندي کړ ، او بیا خپله په تخت کښېناست نو د پښتنو داخلي آزادي ئې هم په شه سترګه نه لیدله ، او هر کله به ئې غیر حق مداخله کوله ، دې مداخلې پر خوشحال خان او نورو ویښو پښتنو ډېر بد تاثیر وکړ او خوشحال خان ئې مجبور کړ چه اورنګزیب ته ویاخپېږي او خپله هغه پښتني ننګه چه تر اوسه ئې پټه ساتلې وه په ښکاره پر ځای کړي ، ځکه چه خوشحال خان د هغه په نیت پوهېده چه دی غواړي پښتانه د خان مړئې کړي ، او ددوی له اېنګلیا نو سره ګډ او په هغوی کښې ئې ورک کړي ، نو د هغه سره ئې په ښکاره پر خلاف شروع کړه او په هیڅ رنګ ئې هغه ته سر نه ټیټاوه ـ هو! یو ه پښتون ته ډېر دي او به بې ننګي نه ده چه خپله پښتنو اله او قومیت پر ېږدي او د پردیو دښمنانو نوکر او تابع شي ، خوشحال خان خپله قطعي فیصله داسې اعلان کړه :

> بله هیڅ لیدله نشی په دا منځ کښې
> یا مغل د منځه ورک یا پښتون خوار

اورنګزیب چه د خوشحال خان په نیت خبر شو ، نو لومړی خوئې غو ښتل په لافو او شافو خوشحال خان ډوېره وي ، مګر خوشحال خان خود ډېر بې سړی نهؤ ، بلکه د پښتني ننګې پر ځای کولو دپاره تر خپل سر او ژوند تېر شوی ؤ ، په شاور ننګه زېب خبر و ، په څه تاثیر پرې کړی شي ؟ خوشحال خان ته دا خبره معلومه وه چه د پښتنو دښمنان هیڅکله په دې نه راضي کېږي چه پښتانه دې د یوې ځانته ملي آزادۍ خاوندان شي او خپله خاوره دې له هر [illegible] خلاص وساتي ، او بلکې [illegible] پښتنو الي قانون پیاو[illegible] چه پښتانه [illegible] اسلام لاندې شي او غیر له پښتون [illegible] مشرانو ته [illegible] کړي او [illegible] او [illegible] خوشحال خان [illegible] پښتون او [illegible] پښتنو الي مجبور [illegible] پښتنو [illegible] کړي او پښتنو ته

وایی چه بله لاره شته ؟ یا به د پښتنو الی دښمن ور کوی ؟ او یا به تاسي ور کیږیء ؟ او دا فیصله به هم د توری په زور عملي کیږي لکه چه وایی :

پښتانه چه د تور څه فکر کا ناپوه دی

بې د توری خلاصی نشته په بل کار

خوشحال خان د پښتنو توره ستایی مګر فوری ئې د ځینو پښتنو ناپوهی ستر ګو ته دریږی او په دې خبره خپل افسوس ښکاره کوی چه دوی خو هوښیار نه دی ، ډرغو لیږی مبادا چه دښمنان ئې د خپلو ناوړو غرضو د پاره استعمال کړی او له او دوی به هغې اوړی مفکوری څخه چه خوشحال خان ئې عملي کول غواړی د ګرځوی نو وایی :

| تر مغلو پښتانه په توره ښه دی |
| که په پوهه پښتانه وی څه هوښیار |

هو ! ځینې پښتانه خواران د خپلې ناپوهی له لاسه همیشه د بل د پاره استعمال شوی دی او استعمالیږی ، پښتانه قوی او پهلوانان دی مګر د دوی قوت او پهلواني د هر وخت د نورو د فائدې د پاره صرف شوی دی ، پښتانه له جنګه تښتېده نه کوی مګر جنګ ئې د هر ځل د نورو د ګټې د پاره وی ، پښتانه د مرګ سره په خورا خوښۍ مخامخ کیږی خو د هر ځله ئې مرګ د بل چا په خاطر وی حتی کله کله ځني پښتانه د ډېره ناپوه کیږی چه د بل په غولولو د خپل ملیت او د خپلو ګرانو پښتنو ورونو د مفاد پر خلاف استعمالیږی ، دا له دې جهته نه دی چه دوی قصداً دا کار کوی بلکه پښتانه د پر په زړه نو صاف خلك دی ، هر وخت چه پردی شیطانان د دوی په رګونو ننه وزی نو د دوی غوږ لوی او د دوی د ضمیر د صفائی څخه بده استفاده کوی ، د پښتنو دښمنانو غوښته پر پښتنو حکومت و کړی مګر پښتنوالی دا نه منله ، نو خوشحال خان مجبور و

د پښتنوالی د قانون تابع او سی ځکه چه پښتون و او پښتون باید خپل ځانته قومی آزادی در لود لای؛ اورنګزیب چه د پښتنو دا حق نه مانه خوشحال خان ملی مکلفیت در لود چه مقابله شروع کړی او د ملی مقابلې ته پښتانه راوبولی او ور ته ووائی:

په داسې وخت چه وخت د ناموننګ دی　　دا بې ننګه پښتانه کاځه ور فرار؟
هرګ ځما په پوهه ښه تر داژوندون دی　　د عزت سره چه نوی ژیست روز ګار
آفریدی، مومند، شینواری ګوره څه کا　　د مغلو لښکر پروت په ننګرهار

پښتنو زلمیانو چه د خپل ملی مشر دا ناري واورېدلې او پوه شول چه رښتیا پښتنو ته یو مستقل آزاد ژوندون او قومی حکومت لازم دی او پښتانه باید د بل ترحکم لاندی نه وی او نه باید د دوی ګرانه پښتونخوا د بردی ځمکی ضمیمه شی، او تول په یوه سلا په خوشحال پسی روان شول او د خپل ملی مقصد او پښتنی ننګکی دپاره ئې ډېرې ډېرې قربانۍ ور کړې او داورنګزیب په زرو لښکرو سره ئې سختې جګړې و کړې چه خوشحال خان هم د خپلو ځوانانو قربانی ستائی:

ما په ننګه د پښتون ځوانان قربان کړه

بیا مې غوره غوره جمع ښه ځوانان کړه
چه په شپه را سره تول وو، په زر ګونه
په سبائې له ماواړه ځان په ځان کړه
د سرې د لاسه مره وی څه به ښه وُ
لیونی کوته سری مړه ګوره شهران کړه
چه شاهان ځوانان مې و مړل ها له مړ د یم
که دهر یوه مې سا ری سل ډمان کړه
سږ خودا په خوشحال و شوه بیا تر کاله
ګوره څرنګه ښکاره شې د سبحان کړه

تر څه مودې وروسته اورنګ زیب ته دا ثابته شوه چه خوشحال خان
آزادي پښتانه په زور او په قوت ماتولی نشي، نو له دې جهته د فریب او دروغو
او ټیټ الدلالې ورته راوړاندې شو، په خوږه ژبه او احترام ئې دربار ته دعوا کړی
د پاره وغوښت، قسم او قرآن ئې ورسره وکړ، که څه هم خوشحال خان تجربه
کار سړی و، مګر اورنګ زیب دده ځینو خپلوانو ته په رشوتونه وښندل چه
خوشحال خان راضي کړي، هغوی چه هم بنامه پښتانه خو په خوی انګریزان
وو، د پیسو په عوض کښې ئې خپله پښتني ننګه ترشا کړې ده، خوشحال خان
ته ئې ډېر اصرار وکړ، چه ضرور دعوا کړی د پاره ډهلي ته لاړ شي، خان د اورنګ زیب
په قول او قرآن او د ځینو بې ننګو خپلوانو په مشوره باور وکړ او پوازې پښور
ته ولاړ، هلته د پښور حاکم د ډهلي د دربار په اشاره داد پښتنو ننګیالی مشر
بندي کړ، او تحت الحفظ ئې ډهلي ته واستاوه، خوشحال خان د خپل د دغه بند
قصه په (۲۲۰) بیتو کی وېلې ده څنګه چه دا قصه په نظم او اوږده ده نو دلته
د هغې خلاصه په نثر لیکم:

د "جمعې شپه ده" خوشحال خان د سهار خواته بدخوب وینی، له خوبه راپاڅېږی
تر غسل وروسته سنت ادا کوی، خلک په آرام خوب ویده دي، خوشحال خان
پوازې اشرف خان ویښوی او څه نصیحتونه پر کاغذ لیکلی ور کوی،
فرض لمونځ په مسجد کښې ادا کوی پر خپل آس چه "سیلی" نومېږی
سپرېږی او د پښور خواته د هغه ځای د حاکم د غوښتنې په اثر پوازې روانېږی
"جمدر" ئې را اخیستی دی په "نوښار" کښې نمر باندې را خېژی.
څاښت "پښور" ته رسېږی د هغه ځای حاکم ته سړی استوی چه زه راغلم
څه وخت حاضر شم او څه کار دی؟ ځواب ورته راځی "ننه شوه چه راغلې،
سبا دیوان ته راشه!" خو دا کېدی خرحاکم دري ورځې دربار نکوی
او خوشحال خان هم په ځان خبر نه دی چه کیفیت څه دی؟ د ګجرات شیخ

چه دحا کم پهلاس ؤ ، او ډېر کړ په نظر ئې دراود ، خوشحال خان ته وایی ! «ترماراشه چه مشوره سره وکړو بیا به جواب ته درواو» خوشحال خان په پاك زړه په ترې ورغی ، فوري شاهي سپاهیانو ډله ئې را گیر کړی او خوشحال خان ئې مفت په لاس کېوزی :

لور په لور مغل ترما چاپېر شو په هنر

مفت ئې په لاس کېبو زم په حکم د قدیر

کوزئې کړم له کوټه چه ئې کېبو تم په جال

زرئې راپه پښو کړې پنځه سیرې بیړې کوټوال

د پښتنو ننگیالی مشر بندی کېږی ، دا خبر په پښتنو کښې خپرېږی او هر څوك حیرا نېږی ، درې ورځې وروسته د ننگیالی خوشحال خان ځینې بې ننگه ترونه چه پښتنی ننگه ئې ترشا کړې وه دښمنانو ته ورځی آسونه او نور خلعتونه اخلی ، مگر نور ننگیالی او ویښ پښتانه دغلیمانو مرگ ته تیارېږی او غواړی چه د مغلو په مقابل کښې و پاڅېږی ، خو پخپله خوشحال خان ئې منع کوی او ور ته وائی :

«په شر او شور کښې فایده نشته ، اولس تباه کېږی باید له صبره کار واخیستی شی»! دوې میاشتې په پېښور کښې بر تېرېږی ، صوبدار له خوشحال خان څخه پنځوس زره روپۍ غواړی مگر د خوشحال خان غیرت دا چیرته منسله چه پیسې ور کړی ، او خان آزاد کړی ، او وائی :

د غوښتې پنځوس زره روپۍ به صوبدار

ماوې در به نکړم یو پوچك نسه یو د پنسار

وروسته صوبدار د خوشحال خان ځینې ننگو ترونو په مشوره د پښتنو قومی سردار هند ته لیږی ، د ښار (پېښور) څخه ئې پاسې امرئیه شپه د شاهجهان خان په ربار کښې [illegible]

«خیر آباد» ته ځي له هغه ځایه داټك ته سیند پورې وزي پر «پړه» او «باباحسن ابدال» باندې ورځي او له هغه ځایه ژ «پنډي» ته او له پنډۍ څخه «ګکړتال» ته بیائي او په سبائي «لاهور» ته رسیږي په پای کښې د روژې د میاشتې منځ ته په ۱۰۷٤ هجرې کال دهلي دربار ته ورځي؛ تر ډېر سوال وځواب وروسته په ضمانت خلاصیږي مګر د وطن اجازه نه ورکوله کیږي د کوتوال د کور تر څنګه یو کور ورکوي چه هلته اوسي د شوال په میاشت کښې د سید میرزا کره خط ور باندې راځي چه :

مه ډېر ږیږدی خوشحال دده پر ښو ول دی اختلال
بیا په منځ کښې پروت د خلاصي په ډېر جنجال

د خوشحال خان ځای تدیر ککوی او بندیې سختیږي تر پنځو میاشتو بند وروسته اورنګ زیب وایي چه «خوشحال خان په خلاص کړم خو چه خپله کډه له پښتونخوا څخه دهلي ته راولي او امیر خان دده کورونه غوا دي په دې وخت کښې اشرف خان دخان زوی د مغلو حاکم په کابل کښې بندي کړی دی تر څه مودې وروسته خوشحال خان «رنتبور» ته لیږي هلته وایي :

څو میاشتې په بند وم په دهلي کښې په عنا
اوس په رنتبور کښې بندي پروت یم یکتنها

خوشحال خان د پښتنې ننګي دباره څلور کاله بندي کیږي او خپلې سهوې چه دده د بند سبب شولې داسې کښي :

خدای و کړې دا چارې په ما واده و کړې زده
څو چارې غلط شوم چه مې اوی کړ احمق تره
بل چه دده لور مې امر اته کړه وا ده
بل چه مې په کور کښې څه کښې نه بول سپین سره

بل مې چه يو کوټ محکم بنا ئـه کړ پـه غـرونه

بل چه مې په تـوره په خدمت غرور کـا وه

بل مې چه مغل په ور کړمـر کـړئـه غـو لاوه

بل مې چـه پـه وخت ذنيـوو ملـك نـه ولاړه

بل مې چه قـوت د يـو سفـر يـو ور کـا ده

بل مې چه پـه اصل غوز يا خپل پښتون کـانه

دغلورو کـلو وروسته ايله کېږي، مګر هره ورځ به په دربار کښې حاضرى ورکوى او دخوشحال خان آزاد روح په دې قيد سخت ترفشار لاندې راغلى، په ۱۰۷۷ هجرى کـال درجب د مياشتې په ٤ داسې شکايت کوى :

| | |
|---|---|
| هره ورځ ورته در بـار تـه | ګـرځـم دا ځـه مشـقت دى |
| دبـل حکم برې زندان شى | چه پـه خپل حـکم بـا دت دى |
| نه شيرين خوازه ياران شته | نـه د چـا سـره صحـبت دى |
| نه خپل ور کړل رانيول شته | نـه خپل حـکم حـکو مـت دى |

په پاى کښې په «آ ګره» کښې د خپلو نورو ننګيالېو خپلوانو په ملګرېــ فرصت مومى چه وطن ته ولاړ شى او بيرته د پښتنى ننګى ترسره کولو موقع پيدا کړى ! »

داد خوشحال خان دبند هغه قصه ده چه ده پخپله نظم کـړې ده، مګر ده دبند په وخت کښې هم پښتنى ننګه هيره کړې نه وه ، او په خپل کښې ئې هم دلخينو بې ننګو پښتنو دويښولو دپاره د پښتنولى له درده ډك اشعار ويلې دى، مثلا په (۱۰۷٤) هجرى کـال دبرات په مياشت چه ئې خوشحال خان بندى دلاهور په سيند تېر اوو، ده د پښتنو دانتقام حس په دې الفاظو ويښاوه :

زمانې لهېنو يارا نو نـسه مهجور کړم — څه بلا ئې مبتلا په ډېر ضرور کړم

نررونواله پښتونخوا په ځاى ميشته ده — خو يوزه دې زمانې په کښې منصور کړم

مړ که هومره مهلت را کړه په جهان کښې — چه «جمدر» د مدعی په وینو سور کړم

که ئې درست د مېږو زور را ته ښکاره کړ — بیا فلك سره کشتی په خپل دستور کړم

نه به بیا په غاړه کېږدم د ننګ توره — نه به بیا په قوم کښې کښېنم اوبه هور کړم

عجب مار مې چار و تلی نردو ښود دی — مګر لوی پادو پیداشی چه ئې دور کړم

مستمانیان خونی مزری په ځنځیر کېږی؟ — بویه د اچه ځان فلك و ته زبور کړم

په خپل آه مې باورشته اثر به و کا — رقیبان به او ر لړو لی د تنور کړم

تر پر ګال بند وروسته خپلو ناپوهو پښتنو ته له بندی خانی څخه

دا پیغورونه را استوی :

ننګه خدای چه بندی کړی دی خوشحال — هم ننګه به ئې خلاصی کا په هر حال

نام و ننګ ناموس که داد افغانی وی — چه ښکاره ئې شو په داد ور احوال

مخ د درست غوری دی تورشی په تبیه — بیا د وا دو پښتو ژبی په دنبا ل

که د سمې که دغره دی یوسف زی به — همګی مزری دی مه ئې وه ز و ل

د خپل ځان صفت به نکړم چه زه څه یم — لرو بر واړه روښانه دی پـا شغا ل

که خوشحال خان خټك وار بیا موند په جهان کښې — خود به وویني د دې چا ری مآل

ما په خپله په ځان کړی دی دا چاري — چه مې ور کړه و نا اهلو دا منال

که په نحس طالع بند شوم عیب نشته — کله کله تندر هم نیسي هلا ل

چه همېش په یوه حال وی ننګه خدای دی — په سر یو باندی تل نه وی یو حال

څلوېښت کاله مې خوزه کامرانی وکړه — څه شو چرخ که مخالف شو یو نیم کال

نه پر کېږی نه فریاد کا، نه چیچال کا — هر هوښیار مرغه چه لاندی شی تر جال

پښتانه له لره منصب نه دی غضب دی — چه تلا ش دا ځا فو کا لا یې دال

که هزار کاله دی پښتون مغل به لشی — بویه داچه له زړه و باسی دا خیال

ځماتې دمړزي روغه که څوك غواړي — هېڅ د دې خبري اشتباه احتمال
پښتنا نه اره شريك اند بېريږي شه دي — نه اخو سټې دمغل دهجري شمال

کوم وخت چه اشرف خان هجري دخوشحال خان زوی جيلخانې ته خپل پلار ته خط ليږلی، خوشحال خان په څه متانت هغه ته ځواب ور کوی، او له کلامه ئې ښکاريږي چه دهند دمغلو ډيره مظالمو هم د خوشحال خان څخه پښتني ننګه هيره کړې نه ده او دپښتنولۍ هغه غرور ئې په سر کښې دی چه بايد دهر صحيح پښتون پهسر کی وی، هغه ځواب دادی:

په مړدن پروا دار نه يم — په زندان پروا دار څه يم
اشرف خان دی راته کښلي — څه خو خونې په خط ده يم
پښکه مياشتي يم په بند کښې — با باهر ډاډه په زړه يم
زو په ما خو غم د تا کړ — چه نه شه ئې زه خو ښه يم
چه فلك سره سر باسي — په همت کښې هغه زه يم

په هرصورت خوشحال خان چه له بنده خلاص شو او بېرته وطن ته راغی، نو بيائې د پښتنو دښېګڼې تحريك شروع کړ او خپل هغه وينې ز لميان ئې په هر لوري ته تيت شوي وه، دوباره پر ځان راغونډ کړل او په تينګ عزم دد ښمنانو مقابلې ته پاڅيد، داځکه چه خوشحال خان خو لا لمړی هغه وخت چه بندی نه ؤ، دمتحدا وزينو پهنيت پوهېده چه هغوی د پښتنو دربادی خيال در لود، د پښتنانه ئې نه بربنو دل چه ځانته خپل قومي حکومت او تشکيل جوړ کړي او يا مستقله آزادي ولري، نو پښتنو ته وائي:

پښتنو سره زه نه يم د تي د مغلو — څبر دار ئې په ايتونو بلك په يلك يم
له سره که ناسره يا نه معلوم دی — په دا کار کښې په معنی الله محاك يم
په نا حق ئې په زندان کړم دوه کاله — خدای خبر دی، که پخپله ګناه شاك يم
[illegible] — چه ئې ننا په هغه زيست پوري هاك پلك يم

پخپل نام و ننگ چه راشم لېو نی شم

خبر دار کله په سود و زیان دلك یم

چه په طمعه داو روز غلی وشست نه

گمان مکړه چه هغه نادان ساك یم

وپیناو ته سور مهر یم د زرو

په دلیل د نابینا لکه پوچك یم

هیڅ له قدره می وکړی خبر نه دی

که رښتیا وایم دستر گو مرد ملك یم

لکه باز په لوی لوی ښکار زما نظر دی

نه چه گرزی گونګټ نیسی باد خورك یم

چه په غوښو ئی روزگار هغه مزری یم

نه چه ولی دوښو خوری هما مېرك یم

په دا سپینه زیره شرم عزت ښه دی

څه به نوری جاری کړم مکر خوردك یم

چه منصب می د مغلو خوړ یو ملاك و م

چه منصب د مغل نشته اوس ملك یم

د فرمان د پروانی حکم ئی نشته

شکر دا چه پخپل حکم پخپل ولك یم

له تصد یق شته نه یاداشت شته نه توجیه شته

نه په فکر دسند نه دد ستك یم

هر کیدی به چه له ما سر کوزی غوښته

د هغه دسر یا توره یا کوتك یم

پښتنا نه لره شړی انده پروت بس دی
نه په فکر د مسند نه د توشك یم

آزادي ده په ساده سپینه جامه کښې
خلاص له غمه د زربفت او د مېلك یم

د وښو جونګړې هسې راته ښې ښوې
وایې ناست په محلو نود آهك یم

که او ګره د ښو شته په شلو نبو سپینه
د مغلو پلاو پاته د ډېر ډېري ډك یم

چه نیولی مې داهو د ننګ و نام دی
که له خپله هوډه واوړم کنیز لك یم

په بل غشي په توپك ویشتلی نه یم
که ویشتلی یم خو بیا په خپل توپك یم

ن خو قام راسره د ډېره جفا وکړه
کاند به یاد خدای و حکم و ته څك یم

که ختکو راته شا کړه منځ ئې نور شه
زه بوازی په تکیه د خدای شېر لك یم

مهمندی زما د ګډې لاس و پښې دی
راضي من د اپریدیو په ټکو ملك یم

کرلانی خو بنی خو چه پښتنا نه دی
زه د ننګ په کار له واړو مشتر لك یم

دېری چینې چه تراوش وکا دریاب شي
چه لیده شم اوس خو دایم یو ډلك یم

کډمی عمر په شمار ه تر شپیته تیر دی

لا په کار دسوارۍ لکه او زیلک یم

دافغان په ننګ می وتړله توره

ننګیالی د زمانې خوشحال خټک یم

خوشحال خان دمتجاوزینو سره دپښتنی ننګ دپاره مقابله شروع کړه ، ډېر سخت سخت جنګونه ئې ورسره وکړه ، ددهٔ پراوزه دپښتنو ننګیالی زلمیان هم ولاړ وه ، چه دپښتنی ننګې او د پښتنو د آزادۍ دپاره ئې په خپلو سرو لوبې کولې ، ځکه چه پښتنی ننګه دهٔ او د ننګې په کار کبی خوله قندهاره تر اټکه ټول پښتانه یو ؤ . نو پرمتجاوزینو ئې تا تار جوړ کړ او په لومړی جنګ کښې ئې ځلو ښت زره تاریه تار کړل ، داځکه چه خوشحال خان پښتانه پوهولی وه چه دښمنان غواړی پښتانه تباه اودخان غلامان کړی او یا ئې دنورو دروازو ته ودروی نو پښتنو چه هیڅ وخت دچا غلامی منلې نه ده دغیرت اوننګ وینې ئې په جوش راغلې اودخپل استقلال دپار ، چه ددوی طبیعی حق و ، نورې له تېکیورا وستلې اودپښتنې ننګې دپرځای کولو په غرض دزورور دښمن مقابلې ته ورپاندی شول . پنځه کاله ئې ډېر سخت جنګونه له دښمنه سره وکړل ، اودخیبر درهٔ ئې ددښمنانو په وینو سره کړه . څو په پای کښې اورنګ زیب په خپله مجبور شو دپښتنو جنګ ته راووت ، او یو کال دا ټلک په غاړه پروت ؤ . خوشحال خان داورنګ زیب دغیښتلو لښکرو سره هم اوزه ور کړه په خپله دی وائی :

( اورنګ زیب راته یو کال وشو چه پروت دی

بهصورت حیران پریشان په زړهٔ افګار

د پښتنو د ننګیالیو ځوانانو توره او ځینی مشهور جنګونه داسې بیانوي

( پښتنو ځلمیو بیا لاسونه سره کړه

لکه باز منګالی سرې کا پخپل ښکار

سپینی توری ئې ګلګونی کړې په وینو

په اهار کښې شګفته شو لاله زار

د خیبر دره ئې سره کړله په وینو

په « کرپه » ئې هم روان کړ دند و کار

تر « کرپه » تر « باجوړه » سمی غرونه

په لرزه په زلزله شول په بار بار

په هغه لوری چه کېږی پنځم کال دی

هره ورځ د سپینو تو روخر بهار

( درست پښتون تر «قندهاره» تر « اټکه »

سره یو د ننګ په کارېږ و آشکار

( اول جنګ د او ېې شاد « تهتر و » و

چه ځلو ښت زره مغل شول تار په تار

( خو بندې لونډی ئې په بند د پښتنو شوې

آس، اوښان، هاتیان اولچه قطار قطار

دوهم جنګ د «میر حسین» په «دوآبه» کښې

چه ئې وتکېده سر لکه د مار

بیاله پسه د «نوښهره» د کوټ جنګ ؤ

چه مې وکېښ تر مغلو خپل خمار

بیاله پسه «جسونت سنګه» «شجاعت خان» ؤ،

چه «اپمل» ئې په « ګنداب» وپوست دمار

شپیزم جنګ «مکرم خان» و «شمشیر خان» ؤ

چه «ایمل» کړل په «خاپس» کښې تار په تار

چه زما په یاد دی لوی جنګونه دا دی

د ملکو په هر لوری نشته شمار

همیشه فتح و نصرت ده لاتر او سه

پس له دا ده بیا تکیه په کرد ګار

اورنګزیب راته یو کال وشو چه پروت دی

په صورت حیران پریشان په زړه افګار

کال په کال ئې امراګان دی چه پریوزی

طوفانی چه شوی لښکرې کوم ئې شمار

خزانې د هندوستان دی را خپرې شوې

سره مهران دی نسوزی په کوهسار

دا د هیچا په اټلس فکر نه وه

چه به دا کار رونه شی په داد یار

د باد شاه دبد نیتی خه کمی نشته

په بدنیتئې آزار واخیست د خپل پلار

بله هیڅ لیدله نشی په دامنځ کښې

یا مغل د منځه ورک یا پښتون خوار

که ګردش د اسمان دا دی چه لیده شی

که دخدای رضا په دا وی را غی وار

نر مغلو پښتانه په تو ره ښه دی

که په یو هه پښتانه وای خه هوښیار

بل وخت چه شینوارو اوا پریدیو اومومندو پښتنو دخوشحال خان تر مشر توب لاندي ددښمن لښکر ته ماتې ور کړه او طوفان ئې پرې جوړ کړ ، ډېرې اولجې او اسبابونه ئې ځنې ونیول نو خوشحال خان پښتنو ته وایی :

څه شینوا ری څه مومند څه اپریدی وه

چه ئې مات کړ دصوبې وا ړه لښکر

دا طوفان چه په مغلو باندی ساز شو

په کښتن به او لجو هیڅ مکړه نظر

که آسونه که فیلان که اسبابونه

په انبار انبار سپین زروه یا سره زر

دا کینه به یو په سله تری و باسی

که ئې لاس شی په جمله پښتانه بر

پښتنو څخه که شته څه عقل پوهه

ایل یاغی دی ځینی کـا ندی اوس حذر

متجاوزینو چه دپښتنو زور ولید ، پوه شول چه پښتانه په توره ماتولی نشی او نه په زور وربانـدی حکمرانی کولای شی نو دبلې چارې په فکر کښې ولوېدل ، هغه چاره داوه چه پښتانه په روپو دخان کړی او لکه دخوشحال خان په بند کښې چه ئې له پیسو کـار اخیستی و ، اوس هم له دې لارې دخوشحال خان ملی مفکوره سسته او بې اساسه کړی نو پښتنو ته ئې رشو تونه شروع کړل داوخت و ، چه ځینو ناپوهو پښتنو پښتنی ننګه هېره کړه او پښتنوالی ته ئې شا کړه ، خپل پښتنی ننګـ ئې په پیسو خرڅ کړ او بې ننګی ئې وا خیستله او په خپله دخپل کور ورانی ته چمتو شول ، پښتو ئې وشرموله او پیټ وربانـدی پاته شو ، دخپل ملی مشر خوشحال خان ملګری ئې پرېښو وله ددښمن ملاتړ شول ؛ تېښته دی وی خدای ته له داسی نا پوهو پښتنو څخه !

هو ! پښتون هیڅکله په جنګ کښې له مغلو بیږی نو څو چه په خپله ځانه ته بلا نشی ، او هیڅ دښمن پرده بری نه دی موندلی مګر په چل او فریب په پښتنو کښې چه هر خت داسی نا پوه پښتانه پیدا شوی دی چه خپل ځان ئې په پیسو پربل خرڅ کړی دی په هغو د پښتنو کور وران شوی دی ؛ د هند مغلو هم د پښتنو د بربادۍ د پاره دا ښه لاره وموندله او ځینې پښتانه ئې په رشوتونو او منصبونو وغولول او په خپله ئې په منځ کښې سره وا چول ، خوشحال خان چه له یوې خوا د متجاوزینو کمزوری لیدله او له بلې خوا ئې د هغو دا چلونه کتله ، نو داسې پښتنو ته ئې ویل :

مغلو ته چه ګورم هغه هسې مغل نشته
د تورو وار ئې تېر شو اوس ورپاته یو قلم دی
پښتون په زور نیسی په فریب په تیټا لو نه
په ما ئې اثر نشی لا په ما د خدای کرم دی
نه میچ یم ، نه کار ګه چه به په ګودو مړو ګرزم
باز یم پاشاهین یم په خپل ښکار می زړه خرم دی
که ماغوندی نور هم وی په دا کار به ډېر خوشحال وم
چه ماغوندی نور نشته ځکه پروت را باندی غم دی

مګر د ځینو پښتنو سترګی د دښمنانو رشوتونو داسې بندی کړی وې چه نه ئې خوشحال خان په سترګو لیده او نه ئې خپله نا پوهی او بی ننګی ؛ فقط سترګی ئې دښمنانو په دسترخوان کښې وې او نور ئې هر څه تړشا کړی وه هغه زندی چه دښمنانو د پښتنو د مرګ د پاره تیاره کړې وه دې بې ننګو پښتنو په خورا فخر خپلې غاړې ته په خپله اچوله ، خوشحال خان به ویل :

دا منصبونه دا انعامونه والله زندی دی واړه دامونه
پښتون مغل به سره دوست نشی خوشحال ئې مه وینه دا انعامونه

خوشحال خان حیران و، چه څه چاره وکړی ، ځینې ناپوه پښتانه خو دښمن په منصبونو بیخي لیونی شوی وو، څه سدا و نقل ئې په سر کښې پاته نه و ، نه ئې پښتنې ننګ په یاد و، او نه ئې د پښتنو الی نوم او شوتونو ئې توره له لاسه غورځولې وه نو ځکه خوشحال خان مجبور و، دې پښتنو ته طعنه ور کړی :

لیونی شول پښتانه په منصبونو
خدایه ! ماژغورې له هسې غضبونو

پښتانه لره لوی عیب دی که ئې ګورې
چه نازېږی د مغل په لقبونو

شرم ، ننګ ، ناموناموس ئې په یاد نه دی
خو ویل کا د منصب د ذهبونو

پښتانه که جنګ مغل سره په تیغ کا
هر خټک تیوی مغل تر جلبونو

د خټک د ننګ جر که نشته خوشحال له !
لا و تلی دی له کومو نسبونو ؟

هر څومره به چه د خوشحال خان طعنې زیاتېدلې هغومره به د پښتنو د دښمنانو رشوتونه او لقبونه ناپوهو پښتنو ته د ېرول ! په دې وخت کښې خوشحال خان په دېرو سختو الفاظو پښتانه ترټل او ورته ویل ئې :

«خپله قومي آزادی او د پښتنوالی دنیا او د پښتو نخوا ځکه مو د دښمنانو په ز رو بایلله، څومره ناپوه یاست چه اوښ له باره سره کور نه در غلی او تاسی داونې دغاړې ګنګری اوز غنزه اولجه کوی ء !» ځکه چه دوی د څو پیسو په مقابل کښې د خپلو ټولو ملی مقاصدو او افتخاراتو تېرېدل او خپل ځانته ئې مستقل قومي حکومت چه ټولو پښتنو یکښې د سر لوړی ژوند کولای نه جوړاوه نو ځکه خوشحال خان افسوس کوی چه دومره د ېر پښتانه چه یو سر ئې په قند هار بل پرد مغار دی څنګه عبث پراته دی وایی :

بادشاهي ئې د مغل په زرو بايله — د مغل د منصبونو په هوس دی
اوس له باره په خپل کور کښې ورغلی — په او اوس چه داوس دغاړې د جرس دی
بې ننګان د بې ننګۍ په کاروبار کښې — ننګيالی د ننګ په کار کښې هر نفس دی
سر ئې هوری «قندهار» بل ئې «دمغار» دي — تر دا منځ همه مېشته واړه عبث دی

دلته چه له ځينو ناپوهو پښتنو څخه هرې خواته بې ننګي وينی او د پښتنو هره طايفه ځانته ځانته ترقي او په ډېرو سختو الفاظو ئې تنبيه کوی وايي :

«تيرا» مې وليده راغلم تر «سواته» — پښتون مې وليده د الوی لوی ذاته
عقل همت مې د چا ونه ليده — په بيار تهراغلم فاست يم ملا ماته

داځکه چه ځينو ساده د پښتنو د دښمنانو سره په زيست روز ګار ګډ شوی او خپل پښتني ژوند ئې شاته کړی و ، خپله باداری ئې بايللې وه او ډېر ديونو کران شوی وو ، او يا ئې ځينې ورسره کړيوه، رښتيا چه پښتنو ته ډېر شرم ځای دی ، چه هغه چاته لاس په نامه په سلام ولاړ وی کوم چه غواړی پښتانه د ځان غلامان او ځمکه ئې د ځان مستعمره کړی .

د پښتون د قوم هره خطا او ګناه به وربښله شی مګر يوه ګناه ، هغه دا ده چه دوی خپله آزادی پرېښې دی او د بل چا تر لاس لاندی ژوند منی ،

خوشحال خان تر هر څه ځينو ناپوهو پښتنو ته پردی خبره ډېر په قهر دی چه دوی د خورا پست او کښته مطلب دپاره خپل لوی ملی مقصد پرېښې دی ، د دوی ملي مقصد خورا جګ او مقدس دی ، ځکه چه خوشحال خان غوښته د پښتنو يو مستقل قومی حکومت جوړ کړی چه ټول پښتانه يکښې په آزادی ژوند و کړی ، او دا په هغه وخت کې د پښتنو د پاره د ژوند او مرګ مسئله وه او اوس هم ده ، هو ! پښتنو ته چه (حقيقي پښتانه وی) د پرديو تر لاس لاندی ژوند کول مرګ دی ، کوم

پښتانه چه په زښتیا پښتانه دي هغوی هیڅ وخت غیر له پښتون مشره د پردیو مشرانو تر حکم لاندي ژوند نه تیروي بلکه داسي خبره دځان مرګ ګڼي خو افسوس ځیني ناپوه پښتانه دومره تیزي چه دخورا کښته مادي غرض دپاره خپل ملي او مقدس مقصد پریږدي او دخو تنګو او پیسو دپاره دپردیو نوکران او غلامان کیږي او دنورو دمطلب دپاره خپل غښتلي زلمیان وژني او قربانوي ئې . دځینو ناپوهو پښتنو داحال دډیر افسوس وړدی او پښتنوا له پر داسي ناپوها نو پیټ او نفرین وایي ، چه هغوی ولي دخپل ژوند او آزادي دپاره خپل زلمیان نه قربانوي چه دنورو دګټي دپاره ئې وژني . خوشحال خان چه ځیني داسي ناپوه پښتانه ویني چه دپیسو دپاره تر خپل ملي حکومت او آزادي تیریږي او دنورو مستعمره کیږي نو په خورا قهر وایي :

| | |
|---|---|
| که کعبه کړې قبله د خو تنګه ده | په پیسه پسې به در وځي تر فرنګه |
| که پیسه د ملنګي په لباس موومې | مصلې به د ګیدي کا پسې لنګه |

بل ځای داسي پیغور ورکوي :

| | |
|---|---|
| څه بوازي ننګ په ما راغلی نه دی | پښتانه ډیر دی په غرونه په سمونه |
| یا به وا ده دمغلو درم پر هیڅ دی | یا به زه هم په لاس واخلم درمونه |
| چه نور وا خوري دمغلو اړه سپي دی | دسګانو په خوله څه اخلم نومونه |

خوشحال خان وائي چه دښمنانو ځینو ساده ګانو پښتنو ته دحلوا تال ایښی دی ، که دوی پښتانه وي باید مچان نشي او خپل اصلي مقصد پرې نږدي نو وائي :

| | |
|---|---|
| پښتانه لکه مګس وربانديې ګرزي | ورته ایښی دمغل د حلوا تال |

او ځیني ساده پښتانه بد بختان هم هیڅ دې پردي لاس ته ملتفت شوي نه دي که نه وي خوشحال خان څه ګناه کړې وه ؟ یوازي ئې داغوښته چه پښتانه په یوه مرکز سره داغونه شي ، ځانته خپل ملي آزاد حکومت ولري ، څو په دنیا کښي دپښتنو نوم محو نشي او ددوي پښتني مځکه دپردي مځکي ضمیمه

نشي اوددوی ژوند دنورو په ژوند کښې ورك نشي، خوځنگه چه ځيني پښتانه
دخپلي ساده گۍ له کبله هميشه دنورو دلاس آله شوي دي او پرديو خلکو دوی
دخپلی گټې دپاره استعمال کړي دي نو دهندمغلو هم دځينو پښتنو له دې ساده گۍ
ځخه استفاده وکړه او ځيني پښتانه ئې دپيسو په زور په خپل منځ کښې سره
واچول، خوشحال خان چه دغه درد حس کړی دی داسې افسوس کوی:

په بل غشی تو پك هيڅ وېشتلی نه يم
که وېشتلی يم خو بيا په خپل تو پك يم

هغه وا چه ځينو پښتنو دبې ننگۍ توره ترملا کړه اودخپل ملی مشر سره
ئې جنگونه دپرديو دفائدې دپاره وونښلول، لمړی خو بنگښو جگړه ورسره شروع کړه
خوشحال خان دخپلو څو ننگياليو زلميانو سره چه ورپاته وه د پښتنی ننگ پر
ځای کولو په غرض دخپل قوم بدی همه رمنله اودوی ته ئې وويل:

په داخه که د «بنگښ» راته ننگ ننگ دی
زه هم ښه يم دا هم بر غو تر ځنگ دی
عقل زور د «غوريه خيل» تر بنگښ زيات دی
غوريه خيل راسره هم و لاړ په ننگ دی
دبنگښ نه هو نبره زور وينم نه تور د
پېدا کوم تو کي له ما سره په جنگ دی
غوريه خيل او بنگښ دواړه منلي دي
هميشه ورته مغل و هملي لنگ دی
هر ملخې دسر باز په هنر څه زده
چه پيدا هنر کښې سر ښندي پتنگ دی
(لا تر اوسه ئې ماغزه په قرار نه دي
چا چه ما سره وهلي سر په سنگ دی)

( لا یه خوب کښی په لرزه پرېوزی نه کېږه
چه دچا ترغوږ د مادتو ری شر نګ دی ;
( کهٔیه دا دور مـی ګو رې مغه زه یـم
چه مې داغ په خاطر ایښی داورنګ دی ;
( درست جهان می و مغل وته خبر کړ
څای په څای ئې پښتانه و ته قالنګ دی )
( څینی څه لوئی دعوې لرم په زړه کښی
ولی څه کړم چه پښتون داده بې ننګ دی ;

پښتون خوشحال خان چه تر هغه وخته داورنګ زیب په زرګونو لښکرمات کړی او ښتولی وو اوهیڅکله ئې ماتې نه وه کړې او په هرمیدان کی بریالی و او س دخپلو څینو ناپوهو پښتنو دلاسه مجبور شو غروته و خېژی ، د « ګنبت » پوجنګ چه په ۱۰۸٦ هجری کـال واقع شو ، داسی تصویر وی :

دپښتنو په توره مات نه یم باور کـړه
د « ګنبت » په جنګ می مـاته آسما نی وه
چه مې پښه سواره دخان دو پاندی نکړ ل
هم پـه دا سبب را پېښه پښېمـا نـی وه
چه مې تول دوپاندی نه تلل په جلب کښې
همـګی د « حسـن خېـلو » اسـا دانـی وه
سـال رحمت د « مومندیـو » پـه تـښه شـه
چـه دديو چـارلـه مـاسره جـا نـی وه
( چه په توره ئـې « شېر خان » پر پوست له آسه
پـه میدان د « عـابدخان » (۱) پهلوانی وه

(۱) عابد خان دخوشحال خان زوی دی

چه سردار د بنګښ پر بووت خټک مات شه
په دا هسې رنګې چارې حیرانی وه

«عابدخان» چه په مردۍ راغی له جنګه
وخپل پلار ته ئې ښه ارمغانی وه

پرون کې پرون کې ئې د سر شالونه ولاړل
په سرو وینو ئې څېره ارغوانی وه

لاس په لاس ئې انتقام د بابا واخیست
په دا کار باندې سزا ثنا خوانی وه

چه ئې جنګ په میدان کړ یو څو سپاره وه
نورو واړو بخره تښت تن آسانی وه

د خټکو په سپرو باندې لعنت شه
په بوه جلوه ئې تښته ځان ځانی وه

چه او له ما ئې ګډه په سپرو کړه
په سپرو کښې چار د جټ د عثمانی وه

ښه ځوانان چه د ګنبت په میدان ومړل
د هر ځوان په زړه کښې اندګه افغانی وه.

همګې ځوانان د ما د زړه ارمان دی
پکښې بیله د عبدل (۱) تاند ځوانی وه

د غلیم سره په آس غاړه غړی شو
د عبدل د مړ تښو ب بخره کافی وه

ما دا هسې جنګ هرګز لیدلی نه ؤ
څو مې عمر، څو خټک، څو مې خانی وه

---

(۱) عبدل هم د خان زوی دی .

ځوانان جنګ تمامه ورځ کانده ما تېږی

په یوه لحظه لمحه ماتې آنی وه

یا لښکر د نام و ننګ دی یا دزو

زما دا تولـه دننګ نه وه ناني وه

همګی په یوه سیر را سره ټول وه

په یوه ساعت ئې څکه پریشانی وه

چه نه دین وی نه دنیا چنګونه څوك کا؟

مګر سهله جانبازی چا نستانی وه ؟

چه په خواست او په ضرور سره ټولېږی

دهغو لښکر و کله و دانی وه

چه می داځله غلیم لـه ډ کي خلاص شو

پری یکبار ه دفلك مهربانی وه

لکه څاړی چه و بازو ته ځان څیر کا

هغـه هسی دغلیم پـر افشانی وه

که زه روغ په ځای ولاړ وی غلیم څه و؟

دیر هار په کار می درستة ویرانی وه

داڅه مړه زما ځوانان نه دی په جنګ کښې

دا زما دننګ په کار کښې مهمانی وه

که می خپل که می دښمن مری په دا کار کښې

په هر تو کی می حاصله کامرانی وه

سل څلو ښت ځوانان می قتل په میدان شول

دا ختر په عرفه کښې قربانی وه

چه بې زخمه له میدانه ځي نامرد دی
زه زخمي لاړم د ځان ننګيالی وه

یوه نیښته نامردی بله مړدی وی
ودانا وته دا دواړه عیانی وه

انتقام وته مي نیښت و، له میدانه
نه مي یاده دد نیا ژند ګانی وه

تل خوني مزري هم جنګ کا هم ځان ژغوری
دمزری دنیښتی څه بد ګمانی وه

پیغمبر چه له کا فرو نه فرار کړ
وکا فرته ئي په زړه کښي تیغ راني وه

که ظفر که هزیمت بیامي میدان دی
چه دپلار نیکه مي بخره میدانی وه

که ژوندی په دنیا پایم خود به ګوري
چه په تیغ مي څه ورانی څه ودانی وه

دخو شحال اختیار تر واړه بنګښ تیر دی
که څه ننګه دختک د کړ لانی وه

مګر دپښتون خوشحالخان داماتي لکه پخپله چه ده وویل دانتقام اخیستلو دپاره وه چه له دښمنه خپل انتقام واخلي، او بله داچه د خوشحال خان څه داسي مقصد نۀؤ، چه هغه به په یوه ماتي ده له مغزو څخه وتلای، دده مقصد دپښتنو وینبوالی او دپښتنی ننګی پرځای کول ؤ، نو ددي مقصد په لاره کښي چه هرراز مشکلات اوزحمات دده مخي ته راتلل، ده به خپل تینګ عزم او لوړ همت هغه او اړول، اوله مخي ئي بیرته کول، نو وروسته ترهغه

چه د ځینو بې ننګو پښتنو له بې ننګۍ څخه ئې لوئی پر ښوو له او کمه ئې و نیوله :

د بې ننګو پښتنو له غمه ما — او ئی پر ښوه و نیوله کمه ما
هغه ملاءی چه په هوښیره لوی غروه — په نا کام کړه ومغل ته خمه ما
دهغو د خولې کېږې خبری اورم — چه خبره ور ته نه کړه سمه ما
داهم ښه که په دا کار کښې هومره کاروی — چه که واخیست انتقام له ګرمه ما

بیا دانتقام اخیستلو دپاره پاڅید او په (۱۰۹۱) هجری کال درجب په میاشت ئې پر ، ډوډه ، نومې ځای داسې انتقام له دښمنه واخیست چه له دښمن څخه ئې د کښت کاميابی هېره کړه او په دې انتقام اخیستلو د خوشحال خان او دده د ننګيالیو ملګرو له زړو څخه هم د کښت د ما تی غمه ووتله ! دلته ددې جنګ له قصې څخه چه خوشحال خان نظم کړې ده پوځو بیتونه رانقلوو ، دی وايي :

« څو وانه خلی له غلیمه انتقام
مرد نه خوب کا ، نه خوابه کا ، نه آرام
چه د ننګ او د ناموس اندېښنه
دهغه سړی بدنه وی احترام
که همت او حمیت ، غیرت یکښې وی
قدر څښتن نه بهتر ګڼه غلام
( په ورو ورو بدقدم زدی وربا ندې خیژی
په یوه ځله څوك نه خيژی پنه بام
پدطالب کښې که سستی نه وی باور کړه
دو ږ ندون او به ، په بیا مومې په کام
واده ورځې سره قند دی برابرې
که له درد ، که له دارو کاندی ایام

دمر دید دنا مردید تر منځ میل نه دی
تفاوت ئې په ذره دی یا په ګام

چه دښل تر لاسه ور غیء دښل شو
مرد په خپل اری دخپل فکر زمام

چه په ذات ئې پلار نیکه توری وهلي
بري جو ړیږی کار دتوری د صمصام

د «ګنبت» غصه می و و تـه لـه دلـه
خدای چه را کړ په «ږوږه» دبری کام

چه په منځ ئې بری دروی «عابدخان» دی
پر هرځای دخپل بابا کا تازه نام

خدای ئې عمر دخپل پلار کړه کام و نام هم
په غلیم دی ئې لاس بر او سی مدام

غلیمان دي تري حذر خوري که پوهیږی
تېره تیغ ئې اژدها دی خون آشام

چه داهسی توروزن وروړئې خدای پیدا کړ
بري دی فخر کا همه ورو نه ما دام

دلښکرو کار څه هسي آسان نه دی
چه بري هر سړی به مو می انتظام

چه رښتینی ترسر تېر بخښیل، خوړل کا
دهغه دو ړانـدی سر کـېـږ دی انـام

دمز ری بخره ور مېږ د نېـله ګا ودی
ګیدړ تر ودی ئې مړ ېږی په لحام

دمیدان هوسیړ به یو یو تازی نیسی
دو دیړ غپ په کبای ږدېږ گرزی انعام

د«دودې» حصار ئې درست پهوینو سور کړ
په « دوده » با ندې چه وشو قتل عام

پاس په غره بساندی محکم ؤ چا و هلی
د «کوهاټ» تر کوټ ئې بنه ؤ استحکام

دخا وند پـه حکم هسی فتـح و شـوه
چه ئې کـار شو پهدوه ورځو سر انجام

داوو کو تـونو کـار دخدای په حکم
وار په وار شو پـه هفته کـښې انصرام

دتـو پـکو د ویشتـلـو پـه لـو گـیو
بل آسمان اتـم پیـدا شـو کبو د فـام

دختـکو تـېزې هسی الـوې پـه ز غـر ه
لـکه ستن پـه خیـمه درو مـی دخیـام

دېر ځوانان غاده غرېړ شول پهدا جنگ کښې
کـه تقصیر نـه ؤ ، د تـو رو دسهـا م

« صفدر خان » لاچېرې جنگ لیدلی نه ؤ
په دا جنگ ئې سر نېـزه کړه په خصام

د«گنبت» ارمان می درستاله دله ووت
که شکست و ، که پر هار و ، که دشنام

د « بنگش » بخره د پـالـی دځو کـیړ ده
نور د ی ننـه بـاسی تـو ره پـه نیـام

ځوك چه خپل کسب پر ېږدی بل کسب نیسی
تر هغه نـه بـه بـل نـه وی عقـل خـام

که گاوز په‌جنګ باتوردی جنګ ئې‌هېردی
چه پــه سرو خـوری څپېــره د ضیغـام

که «بنګښ» ښخه‌ښه‌ننګ‌وای پری به‌نکړای
مـا دده لــه دکه بـاغـه یــو بـا دام

چه‌بې ننګی چـاری کـا په واړ و ورشه
لــکه را غــیء پــه بنګښو دا هنـګـام

دبنګښو شـا مت خپـل سـزا ئــی دا ده
چــه پــه غـوښو ئــې مړ پــېزی ددو دام

هر کهــتر چــه د مهتر ســره ستېز کـا
دعــمل سـزا بــه مـو مــی پــه ا نجـام

هسی غــم مـا تم الــم ور بـاندی راغیء
رنیا ورځ شوه د« کوهاټ» په عـالم شـام

د« کوهاټ» په عـالم واده عا لم ډك شــو
دبنـګـښو کــډه ولا ړه تر « بـګرا م »

که می پښه په « ګنبت» وښوهېده څه شو
پـــه همــت مـی ثـا بتـی وه د اقــدام

د «ډوډه» په جنـګـ کی پیاله میوډك شو
په « ګنبټ» کی چه خا لی وهغه جـام

ښه چه مخ د هغې سو بی را ښکـا ره شو
چــه لیدلــه می پــه خوب او پــه الهـام

شپږ اوه زره «خټك» وه په داجنګ کی
په اولجه سره خـوشنو دشو هــر کـدام

د« ګنبت » جنګ‌می‌نه ننګ دپښتانه‌و
بـل غرض می‌پـه منـځ نـه و، نـه مرام

ددې جنګ ناري به دروی په ملکونو

ږي خو شېږي به همه پښتون ښنام
چه ددې سو بې آواز و شي په هند کې
بيا به زغ شي دبا چا په خاص و عام

چه په نام پښتون غو ځېږي ږ ي خو شېږي
او رنګ زيب هسې باد شاه دی د اسلام

تاسي ګورۍ، سره له دې چه ځينو ساده پښتنو پښتني ننګي ته شا کړې وه او د پښتنو دقومي مشرسره چه بې دپښتنو دلوی والي او ویښوالي ئي بله آرزو نه دراوده، جنګونه کول — خوبیاهم خوشحال خان د دوی په ماتې لـه زړه خوښ نه دی ځکه چه اورنګ زيب دهر پښتون په مرګ خوښېږي، لههمدې کبله خو شحال خان به ويل :

چه په نام پښتون غو ځېږي ږي خو شېږي
او رنګ زيب هسې باد شاه دی د اسلام

اوخو شحال خان دا جنګ خاص دپښتني ننګي پرځای کولو دپاره کړی دی ځکه چه دبنګښو ځيني ساده ګان دپښتنو ددښمنانو په پيسو اوچل ول غولېدلي وه. او پښتني ننګه ئې هيره کړې وه . نوخوشحال خان مجبورو، دپښتني ننګي په لاره کې دهر چا سره چه وی جنګ و کړي . لکه چه وې ويل :
د « ګنبت » جنګ مې په ننګ د پښتا نه و
بل غرض مې په منځ نه و ، نه مرام
که دانه وای ده به دبنګښ له باغه یو بادام هم پرې کړی نه وای لکه چه وایې:
که « بنګښ » څخه څه ننګ وای پرې به نکړای
ما دده له دوکه با غه يو بادام
بل ځای پردې حال افسوس کوی چه دی پښتنو د ننګ دپاره جنګيږي خو ځيني ساده پښتانه پخپله دده په مرګ پسې دی — وائي :

زه‌غلیم داو رنـګ زیب یـم ‏ سر په غره په بیابـان

زه پـه ننـګ دپښتانـه یـم ‏ دوی لـیو لـی مغـلان

د منصب پـه اشـا فـو دی ‏ تـل پـه ما پسی روان

خوشحال خان وایی زه داسی ساده پښتانه وهلای شم، خوبیاهم هر پښتون زما ځان دی، خپل ځان نه وهل کیږی:

دمـا لاس ور بـانـدی رسی ‏ راواهه نشی خپل ځـان

دپښتنو دښمنانو چه‌بیا دتوری په میدان کی څه ونـکړل، نور شوتونـواو منصوبونـوته‌ئې دومره‌زور ور کړ، چه‌په‌پای کې‌ئې دننګیالی خوشحال خان خپل ځوی «بهرام خان» هم دپښتنوالی له دائرې څخه وبوست اودخپل پلار په مقابل کې ئې کار ځینی واخیست داد پښتنو هغه لوی‌بدبختی ده چه پښتانه ئې هروخت تباه کړیدی. هو، زرديې لوی‌بدبختی به‌چیرته‌پیدا شی چه دیوه ننګیالی‌پښتانه زوی‌پښتنی ننګه پریږدی اودپښتو او پښتنوالی پرخلاف دخو پیسو دپاره‌د پلار مـخ ته ودریږی؟ پیسې په دنیا کـی دهر څـا پـه کـار دی اوهر څوك زیا ر بـاسی چه پیسې پیـدا کـړی، مـګر هـوښیـار خلك ددې دپاره پیسې غواړی چه خپل شرف، نـاموس، پت، شـرم او عـزت په خوندی کړی، خپل رنـګ اونوم په‌ښه کړی، خوځینی ناپوهان دپیسو په حب اومینه کی دومره ډوب شی چه‌خپل وطن، خپل عزت او خپل ننـګ په پیسو خر څوی او ځان ته ابدی شرم اوبد نامی اخلی، دخوشحال خان زوی بهرام خان هم‌له دغو ناپوهانو څخه ؤ چه‌خپله پښتنوا له او پښتنی ننګه‌ئې ددښمنا نو په‌پیسو اومنصب بایلللې وه اوځان ئې دپیټ اوشرم ود ګر زدلی و دده ننګیالی پلار د پښتنو دآزاد حکومت فکر په‌سر کی درلود، خودی دخو

پیسو غم لیونی کړی و، لیونی لا څه چه د پلار مرګ او د ورونو تباهی نه ئې
ملا ترلې وه خوشحال خان دده په حق کې وا یې :

هنګامه دولا په منځ کې — د مغل او د افغان
زه په نقش د خپلې چار — که څه شې سرو سامان
دی په وهم په وسواس کې — تل له ما دی هراسان
زه په لویو اندیښنو کې — دی په کور کې دی غران
چه د ما سره څوك تول شی — دده زړه شی نور لرزان
چه د ما دلبر کر غبز شی — او به کیږی دده ځان
په دادوه کاره خو ښېږی — دا احمق، سفله، نادان
چه زما سره څوك نه وی — بل چه سوړ می وی دیګدان
چه زما له غمه وار وی — بې حسا به شی شادان
چه اساس د نوری کښیږدم — دا نا مردئې کا غلطان
و مغلو ته مجرا کا — چه خپل پلار می کړ داشان
چه زما سره بدی کا — پرې رحمت کا منان
دی لاهر څه ورته وا یې — ورسره شی پاهسی خوان
زه دده په کار خندان یم — دی زما په کار خندان
یا خودی مه وی له ما نه — یا زه مه وی په جهان
رسوا ئې شوه ترمنځ پښته — نه څه ورك نه ئې څه زیان
نظام پور لره اوس را غلم — د غه ګوی دغه میدان
چه می وار ور باندی ساز شی — بیار، وداندی کا دوستان
وار د هری چاری تېر شو — فکر اوی دی دا زمان
هر چه دی هغه به و شی — څو لا حو له په شیطان
که کښېنم ننګ او ناموس ځی — که پاڅم پا څی طوفان

په دې کش مکش کې تېرشو — په ما عمر را پېګان
د ګټنې وخت تېر پېږی — واویلا افغان افغانان
مغاجات دې ئې نصیب شی — یا ئې تورمار جانستان
چه هیڅوك پرې بد نام نشی — هسې ګور ته شی روان

لکه عاق دی عاق دی درومی
دین دنیا دواړه خسران

ځکه وخت چه بهرام خان خپل مشر ورور « اشرف خان » د هندد مغلو په بند ور کړ نو مغلو دی د سرداری په نامه سرلوړی کړ، خوشحال خان داسې پېغور ور کوی :

تاهغو د سرداری نز ده بهرامه! — سر داری دی په خپل دور کړه بد نامه
هم تمامی خپلخانې لره بلا شوې — هم خپل ځان لره بلا شوې بدفرجامه
مشر ورور دې په زندان کړ ته خانی کړې — دا خانی دی شه په ځان پوری حرامه
نور دی نوم دما د زویو په شمار مشه — دخوشحال خټك وینا په دا تمامه

دخوشحال خان له وینا څخه ښکاریږی چه دخان ځینی نور زامن هم بې ننګه شوی دی اوده پسا که او قومی نقشه ئې ور کډه وده کړې ده، لکه چه وایی :

زویو می خوی دخټکو نور کړ — زما په نقش ئې پوری سورا ور کړ
وخت د ګټنی دنام و ننګ و — بدو زامنو را څخه خپور کړ

خو هغه زامن چه دخوشحال خان سره په اوزه ولاړوه، او دپښتنی ننګی د پرځای کولو د پاره ئې ځانونه قربانول، ددې پرې ستاینی وړه دی او خوشحال خان ئې هم هر کله ستایی، ځکه چه په هغه وخت کښې دا کمه خبره نه وه چه دپښتنو د دښمنانو رشو تونه په لویه پیمانه د ساده پښتنو په منځ کی خپاره شوی وو، او هری خوا ته سپین او سره ځلیده مګر هغو ننګیالو ځلمو چه

پښتني ننګه ئې پر ځای کوله او د پښتونخوا د ځمکې او پښتونوالي د موجودیت
د پاره جنګېدل، وچه بډه ئې هم په مادئس نشوای موندلای، که دوی هم
د دښمنانو نوکري اختیار کړې وای دوی به هم د ناز او نعمت خاوندان
شوي وای، مګر دوی حقیقي پښتانه وو، او خپله پښتني ننګه او پښتني مځکه
ئې په پیسو نه خرڅوله او نه ئې خپله آزادي د دښمنانو په نوکري بدلوله،
خپل د کاڼي کلک ئې د دښمنانو تر پلاو خوښ و، چه یوله دې ننګیالیو ځلمیانو
څخه عابدخان ؤ، خان ئې داسې ستایي :

داد کاڼي کلک دما دعا بد خان دی
د مغل پلاو دنو رو قر زندانو
که داهو مرغه نا خلف وا به خلف وی
نن به ما نوبت واهه دخسروانو

همدا رنګه خوشحال خان د پښتنو تور وېښ زلمیان چه پر ننګه ور سره
ولاړ وه ستایي، مګر په دې خبره افسوس کوي چه لاس ئې نه رسېږي :

مغل پښتون سره په پېچ و تاب دی
چه پښتا نه ګورم خوا نه خراب دی
ښه ښه ځوانان شته په پښتانه کښې
چه لاس ئې نه رسي خانه خراب دی

خوشحال خان د مغو ساده پښتنو په زېره پوري خاندي چه له ډېرې ساده ګۍ
څخه د دښمن په منصب زړه تړي او له دې نا خبره دي، چه د پښتنو لی
دښمن هېڅکله د پښتون دوست کېدلای نشي او نه هېڅ وخت ئې دا زړه دی
چه پښتون دې ښه شي، ځکه چه که پښتون ښه شي نو د پردیو نوکري به پرېږدي
ځان به وپېژني او ځان ته به د پښتنو آزاد حکومت جوړ کړي او دا فکر به
و کړي چه تر دې چه د نورو نوکر شي ولې په خپله د خپلې مځکې بادار نشي،
نو ځکه خوشحال خان ورته وايي :

زیره دې کله د پښتنو نه شي — چه د مغل په منصب ئې زړه شي
مغل کمزوری غلیم په رحم دی — کله ئې زړه وی چه پښتون ښه شي

په دې ترتیب سره د پښتنو د هغه وخت د دښمنانو له خوا په ځینو سا ده پښتنو کښې رشوتونه خپاره شول او لکه د پښتنو د هر دښمن چه عادت دی پښتانه ئې په خپل منځ کښې سره واچول مګر بیا هم څنګه چه خوشحال خان یو وینښ او آزاد پښتون ؤ په هیڅ توګه ئې د پردیو مری توب نه مانه او نه د مغلو په منصبو نو غولیده، د ده خپل ځان سره ملی مقدسه مفکوره درلوده او دائې عزم کړی ؤ چه تر څو ژوندی وی د خپلې دې لوړې مفکورې له عملی کولو څخه به لاس وانه خلی، او په هره قربانۍ چه کیږی پښتانه آزاد اولوی پښتون جوړ کړی مګر ځینې بدبخت ساده پښتانه د کبر و تیږو و دېوا لو نه وو، هر څه چه به خوشحال خان راسمول نه راسمیدل، دی په خپله وایی:

که هر څو ئې سازوم رانه سازیږی
پښتانه دی د کبږ و کانو دېوال

او ځکه په یواځې سر د دښمن مقابلې ته ودرید او د پښتنو تر اه ننګه د ده په سر ختمه شوه په خپله وایی:

شرم دی، ننګ دی چارد سردی — سمه مې پر ښوه ځای مې غردی
پښتانه وارله د مغل شوروا خوری — ماته ئې پاته دا شور و شر دی

خصوصاً چه دوه ننګیالی او جنګیالی مېړونه ئې په جنګ کښې بیا یلل نو خوشحال خان بېخی یوازې دښمن پاته شو، یو جنګیالی مېړه پښتون «ایمل خان» او بل «دریا خان» و، چه په غلیم ئې ښه زړونه ساړه کړی وه، مګر خوشحال خان به دې تنها ئۍ کښې هم د خپل عالی مقصد څخه ستړی نشو، او ویل به ئې:

د مزر یو مر نتوب په لېنګو نه وی — مشر ئې هر کله یوازی په خپل ځان شي

آزادي تر بادشا هيه لا تېـرى كـا — چه دېل تر حكم لاندى شى زندان شى
په‌جهان دننـګيالى دى دادوه كاره — يا به‌وخورى ككرى‌يا به كامران شى

مـګر دهندمغلوچه‌دخوشحال خان بوازي‌وجود هم‌ځانته لـوى خطر با لـه زيار ئې يوست‌چه‌په هر‌ډول‌وى دپښتنو دالوى اوويښ قـائد له پښو واچوى؛ ځـكه خوشحال خان خپل ځان هغه لوى بنامار ګڼي‌چه د دېښمن تر دم‌لاندي نه را ځي‌وايى :

پښتانـه وائه لـكه مـا رو نه دى — مغل دم كري پخپل كـارو نـه دى
چه‌په‌مارونو كښې لوى مار پيداشى — پسې ئې غواړى كه‌په غارو نه دى

نو مغلو داچاره وسنجوله چه خو شحال خان په خپلو پښتنو له‌پښو وا چـوى او دپښتنو په تـوپك ئې مړ كړى؛ په‌پښتنو كښې خوهم داسې‌ساده پښتانه ډېر وه چه دپيسو دپاره ئې خو شحال خان لاځه خپل پلار هم واژه؛ نودمغلو دپاره ئې په خوشحال خان پسې ملا وتړله اوپه خپله دخپل ملېت او پښتنو الى درا نولو دپاره آماده شول؛ كو م‌حساس اوويښ پښتون‌چه دځينوساده ګانو پښتنو په تـاريـخ كښې داسې لـكې وينى نوډېر متا ثـر ېږى :

تـاسې ګو رئ؛ پښتانه تـل لـه خپله لاسه بـر بـاد شـوى دى همېشه دپښتنوا لـې او پښتنو دښمنانـو پښتـا نـه پـه خـپل منـځ كښې دخپلـو نـاوړ‌واغراضـو دپـا ره سره وژلى دى؛ خوپه‌داسې‌حال كې هم خوشحال‌خان خپله‌دآزا دئ پاچاهى‌اعـلان كـو له :

ګـوره خټـګه پـاد شاهى لـكه خور شيد كړم
يـك تنهـا پـه جهـان ګـرزم لـښكر نشتـه

په‌دي وخت كښې د ننګيالى خوشحال خان عمر (۷۷) كـالو ته رسيدلى‌ؤ خوبيا ئې هم دپښتنو دآزادئ اود پښتنو دملى حكومت جوړ ولو چيغى وهلې مګر خټګه‌چه‌لاېوې‌خوادده‌عمر پاى ته‌رسيدلى‌و؛ اوله‌بلې‌خوا‌ځينى‌ساد ګ نو پښتنو

دده علاماته کړې وه ، نو ځکه دا پر یدیو غږونه وخوت او یو کال وروسته دیو جهان قومي آرزو گانو سره د (۷۸) کالو په عمر د ربیع الاول په ۲۸ په ۱۱۰۰ هجري کال سم له ۱۶۹۰ عیسوی کاله په ډیری نا کامی وفات شو ( انا لله وانا الیه راجعون ) او د لوی پښتون د جوړولو ارمان ئې گور ته له ځان سره یووړ لکه چه وایی

پښتانه چه بې ننگی کا ځوک ئې څه کا     گورستان اره به درومو له ارمانه

خوشحال خان که څه هم له ارمانه ډک زړه گورستان ته ولاړ مگر بیا هم دده جنگونو او زیار چه کومه گټه پښتنو ته ورسوله هغه دهېر ولو نه ده .

هوا خوشحال خان د پښتنو د آزاد حکومت په تشکیل کامیاب نشو او نه ئې ټول پښتانه د دوی دساد گیډ له سببه پر یوه مرکز راغونډ کړی شول ، خو دومره ئې وکړه چه د پښتنو او پښتونوالی نوم ئې له محو کېدو څخه خوندی کړ ، او ځینې پښتانه ئې په دې وپوهول چه پښتون او پښتونخوا باید د بل چا ضمیمه نشی او نه د بېر د یو تر لاس لاندی ژوند وکړی .

خوشحال خان ځان بند ته ور کړ مگر د ده بند بې تأثیره پاته نشو ، بلکه د پښتنو په مغزو کښې ئې په غیر مستقیم ډول دا فکر پیدا کړ چه د پښتنو دښمنان نه غواړی چه پښتانه آزاد ژوند ولری ، نو له دې کبله اکثرو پښتنو خپله لمنه د پښتنو له دښمنانو څخه راټوله او ساتله او نه ئې غوښته چه له دوی سره په معاشرت کښې داخل شی او په هر ځای کی پښتانه د پښتنو د دښمنانو مقابلې ته پاڅېدل او جنگونه ئې ورسره شروع کړل ، حتی د پښتو پر ادب ئې اغیزه وکړه مثلاً حمید بابا وائی :

یو به نشم مغلواله د رقیب سترگا     که زو کړی وم رښتیا له پښتنې زه
یادا :
په دا ټول جهان قراره قراری ده     پر حمید د غم مغل راوختا ته

علیخان وایی :

پری به نېزدمه رقیب داستا کوی ته     ایریدی شوم و مغل ته خبیر نیسم

خوشحال خان په پښتنو کښې ملي روح ژوندی وساته او پښتني ننګې ته ئې ملتفت کړه او د پښتنوالي د دښمنانو د مقابلې د پاره ئې ډېر ځلمي وروزل. دخوشحال خان او ورپښو پښتنو مخالفت له مغلو سره ددې خبرې د پاره نه و، چه «مغل» دي، بلکه دخوشحال خان یادونورو پښتنو مخالفت د هغو له مغلو سره پر دې خبره ؤ، چه هغوی د پښتنو پر حق تجاوز کاوه. ددوی طبعي حق آزادي ئې نه منله، حتی، د پښتنو پر وجود قائل نه ؤ، بلکه غوښته ئې چه پښتانه او د پښتنو ملک په نورو پورې وتړلای او پښتانه دخان یا پنجابیانو مریان او نوکران کړي، ځکه چه ځینې ساده پښتانه ئې هم په پیسو او منصبو غولولي وه، او پښتني ننګه ئې ددوی له یاده ایستلې وه نو ځکه خوشحال خان او ځینې ورپښې پښتانه د هغوی د بدنیت مقابلې ته پاڅېدل او فقط پښتو او پښتنوالي او پښتني ننګ او د موجودیت د پاره ئې د همت ملا وتړله او خپل ننګیالي ځلمیان ئې په دې لاره کښې قربان کړه، نو که دمغلو پر ځای بل څوك وای چه د پښتنو پر حق ئې تجاوز کولای هم خوشحال خان او نورو ورپښو پښتنو د هغه مقابله کوله ځکه چه د پښتنوالي قانون د بل چا تجاوز نه مني هر څوك چه وي. د هغه تر مغلو وروسته د پښتنو مقابله د پرنګیانو د لویې امپراطورۍ سره هم د دې قانون په حکم وه چه تر سلو کالو ډېر ئې دوام وکړ او پرنګیانو نه کولای شوه چه د پښتنو سر ځان ته ټیټ کړي، که څه هم پرنګیانو هم د هند د مغلو هغه لوی چال عملي کړ او ډېر ساده پښتانه ئې په پیسو او رشوتو او منصبو دخان کړه او پښتني ننګه ئې تري هېره کړه. مګر هیڅ ئې و نه کولای شوه چه ټول پښتانه په زور یا په زر د پښتنوالي څخه واړوي او د پرنګیانو ئې د عاګوي یانو کړان کړي له هغه وخته چه پرنګیانو پښتانه د «ډیورند» د منحوس او فرضي خط په واسطه سره ټوټې ټوټې او جلا کړه نو خو را ډېر زیار ئې د یوست چه هغه پښتانه چه پرنګیانو

په‌زور دخان‌خوانه کش کړی وه ، لـه پښتنی ننـګې واخوی او دپـر نـګی دانو کـړی یامزدوری پست روح پـکښې پیدا کړی او بیا د پښتنو مځکه دپردیو مځکو ضمیمه کړی او دپښتنو د پښتنوالی روح ووژنی ، مګر وئې نه‌کولای شوه چه په دې مقصد پوره کامیاب شی ، نه داوتلو په بمونو او نه درو پو په‌خاطو ، کرنیل ریپنګټن چه دپرنګیانو یو منصبدار و ، ویل به‌ئې چه په‌هند کښې دپرنګیانو فوجی لګن ( خرڅ ) له ککـه له پنځه شپیته کروړه دی چه له هغه څخه یوویشت کروړه خاص دسرحد دپاره لګیږی ( ۱ )

نو تاسې له‌دې خبرې نه اټکل کولای شیء چه پرنګیانو دپښتنوالی او دپښتنو د بربادی د پاره د هندوستان درې یمه برخه خرڅ لګولی دی ، او داټول لګښت یوازې په عسکری مهم تو کښې نه ، بلکه په‌دې کښې هغه رشوتونه او تنخوا ګانی چه دپښتنو پرسر اخیستل شوی هم شاملی دی .

مګر بیا هم په پښتنو کښې پښتنی روح چارنه وژلای شو ، او د دوی کی داسې وینې ځلمیان پیداشوی دی‌چه دخوشحال خان دحریت خواهی روح ئې په قبر کښې خوشحاله کړی دی ، اوله هغه وخته چه پرنګیان هند ته راغلی ، او دپښتنو دبربادی خیال ئې کړی دی بیاتر اوسه‌هیڅوخت په‌آرامه کښېنستلی نه دی ، بلکه تل ئې دخپلې آزادی او استقلال د پاره قربانی ورکړیدی دپښتونستان آزادو پښتنو خو هیڅکله توپك له اوږو کوز کړی‌نه‌دی او هم‌هغو وینو پښتنو چه د پرنګیانو ترلاس لاندې وو ، تل د خولې او قلم ګوزارونه دخپلې آزادی دپاره پردښمن کړی دی - چه‌دلته دمثال په‌ډول دپښتونستان دیوه شاه ځلمی قـربانی یادوو : په ۱۸۹۹ عیسوی کـال مولوی میرا جان

---

(۱) سرحد برطانیه و افغانستان = دملك عبدالخان شینواری اثر = ۱۰۰ مخ

کا کا خیل چه دژوند دبره برخه ئې په آسټریلیا کښې د اوښانو په تجارت تېره شوې وه یوقومي تحریك شروع کړ ، ده لومړی د اسلام نشر او تبلیغ کاره چه دده په لاس خو آسټریلیان هم مسلمانان شول او تر اوسه دده دلاس مسجدونه په آسټریلیا کښې شته مګر یوڅه وخت وروسته ئې ناڅاپه په فکر کښې یو انقلاب او تحول پیدا شو او مذهبي تحریك ئې په انقلابي اوملي تحریك بدل شو. د آسټریلیا په پښتنو کښې ئې د قومي تحریك شروع وکړه او یو جمعیت ئې د «مجلس وطن» په نامه جوړ کړ ، خو د آسټریلیا حکومت دانګریزانو په اشاره دا ویښ پښتون له آسټریلیا څخه خارج کړ؛ مولوي میراجان امریکا ته ولاړ، او هلته د کیلیفورنیا په خرا وشا پښتنو کښې ئې خپل تحریك ته دوام ور کړ ، دېر پښتانه ئې د ځان هم خیال او همفکره کړه اودخپل وطن دآزادۍ فکر ئې ددوی په مغزو کښې کښېناوه ، څو ورو ورو د امریکا ټول پښتانه چه د آزادۍ په خوند او مفهوم ښه پو هېدلي وو ، پهدې حزب « مجالس وطن » کښې شامل شول او وروسته ئې ددې مجلس نوم « غدر پارټي » کېښود او د کیلیفورنیا په پنځم لمبر وډ سټریټ 5, Wood Street California کښې ئې مرکز وټاکه او جدي اقدامات ئې شروع کړل .

په ۱۹۰۲ ع کال ئې یو هیئت د محمد عزیز خان یوسفزي تر مشر توب لاندې دامریکا څخه پښتونستان ته را ولېږه که څه هم ددې پښ اودیوې بېړۍ دعملې، په دودرارهي وه، خو چه سنګاپور ته را ورسېدل هلته دانګریزانو له خوا ګرفتار شول، محمد عزیزخان دپښتنو دېنې زلمي په غرغره ووژل شو او نور ملګري ئې په حبس دوام محکوم شول ، دا ددې آزادۍ غوښتونکو پښتنو لومړۍ قرباني وه چه دوطن دآزادۍ په لار کښې ئې ور کړه، اوهم دپرنګیانو د دېمو کراسۍ یوه نمونه وه ، چه دخپل امپراطوریت داستعماري

فکر دپاره ئې اجرا کړه ـ مګر څه موده وروسته په خپله مولوی میرا جان دخپلو څو نورو ملګرو سره په ۱۹۰۲ ع کـال کښې دخپل وطن اراده وکړه ، دجاپان او روس له لاری افغانستان ته داخل شو ، تیرا ئـې د خپل تحریك مرکـز وګرزاوه او د انګریـزانو د تجاوز پر خلاف ئې اقدامات شروع کړه . دتیرا اپریدیو دی په خپل مشر توب ومانه ، څو شپې ورځې ئې تېرې کړې چه پرنګیانو یوه حیله جوړه کړه او میرا جان ئې «چه په دې بهانه مونږ او اپریدی باید صلح او یوه معاهده سره وکړو ، مګر د معاهدې په شرطونو باید چه ستاسو مشر لاس لیك وکړی» جرګې ته ورو غوښت ، خوچه میراجان ورغی ، انـګریزی منصبدارانو ونیو او بندی ئې کـړ ، که اپریدیو هرڅه شر وشور ، پرغل او چپاو نه وکـړه ؛ خومرلـوی میرا جان د پښتنو آزادی خواه زلمی چه له هغه وخت څخه ورك شو ، نور ئې هیڅ پته معلومه نشوه ، او دانګریزانو دامپریالیستی او استعمـار خواهی قربانی شو . که دقت وشی دپرنګیانو داحیله هم عیناً هغې حیلې ته ورته ده چه دهغه مغلو دخوشحالخان بندته جوړه کړې وه . ددې وینې پښتون نورملـګری بندیان اوڅه چه پاته وه هغه بیرته روسیې او امریکا ته ولاړل (۱) دهغه وخت پښتانه که څه هم دهغو په قدر رونو پوهېدل مګر او سنی حساس پښتانه باید دمولوی میراجان او دهغه مجلس په نامه څلی جوړ کړی اودهغه په نامه هر کـال مال ګرد ونیسی .

دادپښتنو دتحریك یوه نمونه وه ، په همدې ترتیب دمیرا جان نه وروسته نور تحریکو نه دپښتنو دآزادی دپاره په پښتونستان کښې شوی دی چه اکثر حساس پښتانه دپرنګیانو په بنداو غرغره ولاړل او کورونه ئې تالاشول چه وروستنی تحریك نه محکوم پښتونستان دملی قائدخان عبدالغفار خان تحریك و ، دا تحریك لومړی دپښتنو داجتماعی اصلاح په نوم شروع او یو مجلس د «انجمن اصلاح

---

(۱) د کابل مجله ۱۸ کال ۲۱۷ ـ ۲۱۸ ګڼې .

الافغانه » په نوم جوړ شو ، چه په دې جمعیت کښې ډېر وېښ پښتانه راغونډ او
د خپل قوم د آزادۍ د پاره ئې ملا وتړله . ډېرې لويې جرګې او غونډې فیصلې ئې وکړې ،

خو د پرنګیانو حکومت چه د پښتنو دا پوهوالی او بیداری ولیده نو د دې تحریك
د خپه کولو د پاره ئې مختلفې پلمې را پیدا کړې او دا الزام ئې په پښتنو
ولګاوه چه «سرخ پوش» کمونیستیان دی . ددې نه پس په پښتنو دومره سخت
مظالم شروع شول چه د هغو داورېدلو د پاره ډېر لوی زړه ضرورت دی . د پرنګی
حکومت ټولې وسلې د توپونو نه واخله تر توپکو او ماشین ګنونو پورې په پښتنو
وچلولې او د تحریك مشران د استعماری حکومت سره د غدارۍ په جرم بندیان
شول . ډېر کشر و باخبره خلقو یقین پیدا شو چه دوی به په غرغره کېدی شي !
په دې وخت کښې د محکوم پښتونستان د هغه وخت د حکومت یو ډېر لوی رکن
خان عبدالغفار خان ته نصیحت وکړ چه د هندوستان د کوم یو سیاسي جماعت
سره ځان ملګری کړه ! خان دا خبره ومنله او د قید نه ئې یوه جرګه هندوستان
ته ولېږله د هندوستان ټولو سیاسي اسلامی جماعتونو دا غټه ذمه واری په سر
وانه خیسته . شو او دا جرګه بېرته نا کامه راغله . خان عبدالغفار خان دا جرګه
بیا ولېږله چه د کانګرس مشران ووېني . هغه وو چه هغوی یو دم د ملګرتیا
او دا له منظوره کړه او د هغې ورځې نه پس د محکوم پښتونستان خدائی
خدمتګاری ډلی د کانګرس سره اوږه په اوږه د آزادۍ په جنګ کښې
ملګرتیا وکړه او د «لندن ټایمز» په قول څومره کار چه د هندوستان
آزادۍ غوښتونکو په شلو پنځوسو کاله کې کړی و ، سرخ پوشانو په پنځو
کالو کې اجرا کړ . ددې نه دا فائده سرخ پوشو ته ورسیده چه د هغوی مشران
د مرګ او غرغرې نه خلاص شول ، او د کانګرس د ملګرتیا په وجه د محکوم
پښتونستان په هغه برخه کې اصلاحات نافذ کړی شول ، خو بل طرف ته د پرنګی
حکومت ته د بهانې او الزام یوه بله وسله په لاس ورغله او دا پروپاګنډه ئې
شروع کړ ، چه کانګرس د هندوانو جماعت دی او سرخ پوشو ځان هندو کړ

ددې پرو پېګنډې ياوجه ځيني ساده پښتانه په سرخپو شوشكمن شول اوددوى دتحريك ختمولو دپاره خودغرضه خلقوته ښه بهانه په لاس ورغله چه دپښتنو دا جماعت (خدائي خدمتګار) كمزورى كړى .

دا كشمكش روان و، چه دانګريزانو حكومت مجبورشو، هندوستان ته آزادي وركړي اوملك په دوو برخوويشل شو، يوهندوستان اوبل پاكستان په دې وخت كې دصوبه سرحد پښتنو ديو آزاد حكومت پښتونستان آواز دخان عبد الغفار خان په وينا اوچت كړ اودټولې انصاف پسندې دنيايقين و، چه پرنګي داځمكه خپل خپل حقدار ته پريږدي نوپښتنو ته به هم خپله ځمكه حواله كړي، مګر دپرنګي حكومت داونه منله اوبه زورئې پواجباري قسم ريفريندم (رايه ګيرى) په پښتنو كې وكړه چه يابه په هندوستان كې شامليږي اويابه په پاكستان كې خان عبدالغفارخان كه هرڅه چيغې ووهلې ولې خوندئې ونكړ، په دې وخت كې دافغانستان زلمى تولواك اعليحضرت محمد ظاهر شاه دهغوملي اوقومي احساساتو په اثر چه دپښتونستان دپښتنو په حقله ئې لرى دپښتو نستان په پښتنو داجبر ونه منلى شو، ددوى دآزادۍ آوازئې اوچت كړ؛ مګر پرنګيان خوخپل امپرياليستي حس له كبله كاڼه وو، دافغانستان دحكومت داپاك زغ ئې وانه وريدلى شو، اواجباري ريفريندم شروع شو، خدائي خدمتګارانو دريفريندم نه ځان مانى جن كړ، اوپه راى ګيرى كې ئې برخه وانه خيستله اوهيڅ قسم غرض ئې په راى ګيرى كښې ونه كړ، په دې چل چه كوم وتونه وغورځيدل دهغو څخه معلومه شوه چه ددې دومره نيارى باوجود اوسره ددې چه مخالف په موقع موجودنه و، بياهم دخدائي خدمتګارا نو مقابلې ډلې څه ډيرى زياتې رائې وانه خيستلې مګر بياهم دسرحد دپښتنو هغه مشران چه دخان عبدالغفار خان ملاتړ ئې ماته كړه له وجداني مسئوليت څخه خلاصيدلى نشي، ددوى فرض و چه پښتانه ئې

د پرنګیانو په چل اوحیله پوره کړی وای ، مګر له بده مرغه مونږ دمخه ویل چه ځینی بدبخته پښتانه دخپلې سادګۍ له کبله همیشه دبل دګټی دپاره استعمال شوی دی او استعمالیږی .

تاسی غور وکړیء دخپل ځان دپاره یوقومی او پښتنی مرکز نه لری خو دنورو مرکزونه په خپلو وینو ساتی؟!

پښتانه دخپلی ځمکی دیوې لوېشتې واک او اختیار نه لری ، خو دپرنګیانو دګټې دپاره ئې د«العلمین» او ایټالیا میدانونه له جرمنی څخه ګټلی دی ؟!

د پښتونستان دجوړولو او پښتنو داتحاد فکر ئې نه دی کړی، مګر و نوروته کشمیر وهی؟! په دې حال لاهم هیڅ ځانته نه ملتفت کیږی ،

خوشحال خان څه ښه ورته وایی :

| | |
|---|---|
| ته خبر نه یې له ځانه | څه په تا کیږي څه ، ها ! ؟ |
| دزنه وایم نه پوهیږې | څه غفلت اری ها هـا ؟ ! |

رشتیا چه پښتانه ډېر غافل دی هیڅ ئې ځانته فکر نشته چه خلك په دوی څه لوبې کوی؟ نن پرون چه دپرنګیانو قصه ختمه شوه ، داخیال کیده چه زمونږ قوم به ضرور ځان ته متوجه او په یوه مرکز به راغونډ شی او د خپل راتلونکی ژوند دښه کولو دپاره به لاري وسنجوی او نور به نودپر دیو دلاس بازونه نشی

مګر افسوس دایتم دعصر پلوشو هم ددوی زړونو ته لار و نه موندله .. که څه هم دا ګناه دپښتنو نه ده داد استعماریت غوښتو انګو پرنګیانو ګناه ده چه اوس لا هـم دپښتنو له سره لاس نه اخلی ! تاسی وګوریء سیلون او برما نه آزادی ور کوی خو پښتانه به لاهغسی دربدره اوبې مرکزه دپردیو ترلاس لاندی ژوند کوی دمغلوالی پرځای خوئې پرنګیواله ودروله اوس غواړی دپرنګیوالی پر ځای پنجابی واله اویا کومه بله توره بلاورډری ؟ څله پښتانه نه پریږدی چه خپله پښتنی دنیا جوړه کړی او پر پښتنی مرکز راغونډ شی ؟ آیا نوره دښمنی لاهم

شته چه بیا پښتانه دخپل استعماریت ترفکر قربانی کړی ؟ او د پښتنو دښکلو ځلمیانو وینې دځان دامپراطورۍ د پاره توی کړی ؟

او س چه پرنګیان دا سې ښکاره کوی چه له دې خوا ئې خپلې ښې تولی کړی دی بیالا هم د پښتنو غم ورسره دی او نه غواړی چه دې نه وروسته هم پښتانه د آرامۍ ژوندو کړی، نو غواړی خپل صمیمی دوستان او صادق شاګردان د پښتنو پر سر نازل کړی ، چه دوی د پرنګیا نو د کیلان وی او پښتانه به په هر نامه حتی د مسلمانۍ په نامه هم د ځان د غـر ضونو د پاره استعمالوی او د دوی له قوت نه به کار اخلی ! کرم وخت چه ئې غرض د سره شو ، نو بیا به پښتانه هم هغه شان تش لاس غږونوته و لیږی او پر هغه څه به چه د پښتنو د ښکلو ځلمیو په وینو ګټل شوی وی خپلې چرچې کوی ، داده د استعمار چیانو دیموکراسی ؟!

خیر ، پرنګیان خو به خو د دا کار و نه کوی ، ځکه چه دوی همیشه پښتانه د خپلو شو موغرضو د پاره قربانی کړی دی ، خوغم دادی چه پخپله پښتانه هم خپلې دې تباهۍ ته ملتفت نه دی .

علامهٔ اقبال د سرحد پښتنو ته څه به وایی :

| | |
|---|---|
| ای زخود پوشیدهٔ خود را باز یاب | در مسلمانی حرامست این حجاب |
| رمز دین مصطفی دانی که چیست؟ | فاش دیدن خویش را شاهنشهی است |
| چیست دین؟ دریافتن اسرار خویش | زندگی مرگست بی دیدار خویش |
| بندهٔ حق وارث پیغمبران | او نگنجد در جهان دیگران |
| تا جهانی دیگری پیدا کند | این جهان کهنه را بر هم زند |
| اندکی گم شو بقرآن و خبر | باز ای نادان بخویش اندر نگر |
| در جهان آوارهٔ بیچارهٔ | وحدتی گم کردهٔ صد پارهٔ |
| بند غیر الله اندر پای تست | داغم از داغی که در سیمای تست |

میر خیلا ازمکر پنهانی بترس　　　ازضیاع روح افغانی بترس

زاتش مردان حق میسوز مست　　　نکتهٔ ازپیر روم آمو زمت:

«رزق ازحق جومجو از زید و عمر　　　مستی ازحق جو مجواز بنگ و خمر»

شکوه کم کن ازسپهر لاجورد　　　جز بگرد آفتاب خود مگرد

عالم موجود را اندازه کن　　　درجهان خودرا بلند آوازه کن

برگ و ساز کائنات ازوحدتست　　　اندرین عالم حیات از وحدتست

در گذر از رنگ و بو های کهن　　　پاک شو از آرزو های کهن

پور آذر کعبه را تعمیر کرد　　　ازنگاهی خاک را اکسیر کرد

تو خودی اندر بدن تعمیر کن　　　مشت خاک خویش را اکسیر کن

علامهٔ اقبال دخیبر په بې مرکزئ د سی افسوس کوی:

خیبر ازمردان حق بیگانه نیست　　　دردل او صدهزار افسانه نیست

جاده کم دیدم از و پیچیده تر　　　یاوه گردد درخم و پیچش نظر

سرزمین کبک او شاهین مزاج　　　آهوی او گیرد ازشیران خراج

لیکن ازبی مرکزی آشفته روز　　　بی نظام و ناتمام و نیم سوز

فرباز ان نیست درپرواز شان　　　از تدروان پست تر پرواز شان

آه قوی بی تب و تاب حیات　　　روز گارش بی نصیب ازواردات

آن یکی اندر سجود این در قیام　•　کار وبارش چون صلوة بی امام

ریز ریز ازسنگ او مینای او　　　آه از امروز بی فردای او

هو! دنور ومرکز ونه دپښتنو په وینو کښل شوی خودوی څوکښ نه پریږدی

چه دیوه قومی مرکز خاوندان شی ؟! دنورو کورونو به ساتی او دهغو په ورو او

کې به ولاړوی ، مګر خپل کور به ئې وران اوهیڅ دجوړولو خیال به ئې په

سر کی نه وی؟! دنورو ننګه به یرځای کوی خوخپله نژدې دی چه بی ننګه شی!!

نورو ته اوی لوی ملکونه ګټی خوځانته یو ننګیالی کلی هم نه جوړوی

خوشحال خان بې ننګه کلی څنګه بنه بیژاندلی دی چه وائی:

مه وئ هسې ګلي چه دچا ګوټ کولمې خوړ ینه

شل خمبې په ګور کې دنهستوړ لــه غمه مړ ینــه

بل فکر ئې هېر دی خو پــه غــم دزړه پوهــول دي

سربېځې ئې واده خوتنــګې تنــګې لوړینه

دپېر ئې ملکان دی پکښې ښه ملك هغه دی

هرچه بې ننــګي کا د چاپېرې رشــوت خوړ ینــه

کښېني په مسجد کښې د سودو نه کا خبری

یادخورد لور دوالو روانو ویل کړ ینه

لس کالو نه تېر کا په یوه جا مه خیر نــه

ګوز وجود برمنډ په سر څیره ګېبیږدي زړ ینــه

خاندي پروانه کا شرم نه لري د تېښتې

دپېرې بې شرمیه دژو ندون دپاره وړ ینــه

جنګ اره چه ورشي نورڅه هیڅ نــه کا بې تېښتې

جوړ چاروسله تېښتې سکه ور ورته نه د ر ینــه

نوم دو دانیو ویران ښهر دی خو شحاله

لانرې ویران مه شه ورځ په ورځ ده کمتر ښه

هو؛ خوشحال خان دپښتنو پرننګه ولاړ پښتون ؤ؛ دپښتنو بې ننګي چه به ئې هرځای ولیده زړه ئې درد کاوه، او دپښتنی ننګې پهلاره کې ترسر، مال اولاد اوهرڅه نه تېرو، ددې خبری دائبات دپاره همدا خبره بس ده چه په ۱۰۸۹ هجری کال ده ځلمی زوی «نظام» نامی د ۲٦ کالو په عمر ځوانمرګ شو، پسر

خوشحال خان بابا دی پښتنی ننګه دومره ګرانه وه چه په هغه وخت کی ئې نور ټول غمونه هېر دی پرېوازې داغم کوی چه «نظام» ولی د پښتانه پر ننګه مړ نشو چه له تلتکه قبر ته ځي ـ تر دې زیات به د ننګیالیتوب حس د پر لېز پیدا کیږی چه د سړی زلمی زوی ئې ومړی خودی ئې په مرثیه کی وایی :

کشکی ځوان د پښتانه په ننګه مړ وای

نه چه ګور اره روان شوله تلتکه

تو له مرثیه داده :

څه داغونه زدې په زړه باندې فلکه !

چه «نظام» دې له ما بیلکا خوائې ته که

خدایه ! ته خو ستمګر نه یې دا څه کړې ؟ .

خلقه دې په دا کار کړه هکه پکه

په لحد کښی هغه مخ خوری په چینجیو

چه د هیڅا بری پرزونه وه ځوانکه

کشکی ځوان د پښتانه په ننګ کښی مړ وای

نه چه ګور اره روان شوله تلتکه

چه دوام په ننګ کښی ومړ هغه زویه

په عالم کښی د خپل پلار غاړه کا لکه

نو پښتانه که څه د پښتنو الی حس لری باید ددې ننګیالی او جنګیالی پښتون مشرو پنا ګانی په غوږو کښی و نیسی او پری عمل و کړی ځکه چه د خوشحال خان ددې ټولو خبرو مطلب او خلاصه دا یوه جمله ده چه وا یی :

پښتنو ! پښتنی ننګه مه پرېږدیء !!

(۲)

خوشحال خان وایی:

# اتفاق وکړئ، نفاق پرېږدئ!

که توفیق د اتفاق پښتانه مومي
زوړ خوشحال خان به دوباره شي په دا ځوان

د پښتنو یوه لویه بدبختي چه همېشه ئې دوی تباه کړي دي او یا ئې تباه کوي د پښتنو په خپل منځ کې بې اتفاقي ده بې اتفاقي هغه بد مزمن مرض دی چه د پښتنو قوي، بدن ئې کمزوری او مړ ګډ نه ئې نژدې کړی دی، بې اتفاقي هغه بد چنجی دی چه د پښتنو لیم دولې تېنګې ریښې ئې سستې کړې او داونه ئې اوس د چېه کېدو خواته کږه کړې ده، بې اتفاقي هغه بده بلا ده چه په هر میدان کښې ئې پښتانه مغلوب کړي او پښتانه ئې د نورو دلاس بازان او د دښمنانو د کټې د پاره استعمال کړي دي، بې اتفاقي هغه شیطان دی چه دوه پښتانه ورونه په جنګ سره اچوي او نه پرېږدي چه دوی په ګډه د پښتنولیم په جنت کښې ښه او آرام ژوند وکړي، بالاخره بې اتفاقي د پښتانه مات هغه لویه ناپوهي ده چه په هېڅ وخت کې ئې پښتانه پرېښي نه دي چه ځان لوړ کړي یا د دنیا په ژوندیو قومونو کې حساب شي او دا اوس چه پښتون قوم تر ټولو قومو پاته دي یو ډېر لوی علت ئې هم دا بې اتفاقي ده، ځکه چه یو قوم یا یو ملت د یو جسد غوندې دی، نو که د جسد ټول غړي په ګډه سره د یو بل کومک ونه کړي او په عمل کې سره متفق نه وي، هغه جسد هېڅکله د نورو ژوندیو جسدو په شان ژوند کولای نشي، بلکه ډېر ژر به داسې مړه شي چه نور به ئې خوړک نوم هم په نومونو کې وانه خلي.

پښتون خوشحال خان چه د ملي طبیب په حیث د پښتنو ټول ملي رنځو نه کتلي او معاینه کړي دي یوه ډېره لویه ناروغي ئې هم دا بې اتفاقي بللې ده

چه د پښتنو ملي اتحاد ئې شلولی او دوی ئې له هر چا نه ټيټ کړی دی، خوشحال خان د پښتنو هره چاره تر مغل ښه ګڼي، مګر دا چه مغلو يا نورو لوبې په کړی دی بوازې د بې اتفاقۍ نتيجه او اثر بولي او پښتنو نه د دوی هغه زوړ جلال او برم ور پيا دوی چه د اتفاق او يووالی له کبله ئې موندلی ؤ، دی وائي:

هره چاره د پښتنو نه تر مغل ښه ده … اتفاق ورځخه نشته ډېر ارمان

د «بهلول» او د «شېرشاه» خبری اورم … چه په هند کښې پښتانه وه بادشاهان

شپږ اوه پېړۍ ئې هسې پادشاهي وه … چه په دوی پوري درس خلق وه حيران

يا هغه پښتانه نور وه دا څه نور شول … يا د خدای دی اوس دا هسې شان فرمان

که توفيق د اتفاق پښتنو ته مومي … زوړ خوشحال به دوباره شي په دا ځوان

بې اتفاقی د پښتنو کور وران کړی دی، کنه اوس به د دنيا له خورا لويو او ژوندیو قومونو څخه وای.

هو! ملتونه او قومونه په پوهو او زړورو اشخاصو ژوندی کېږی او د مدنيت لوړی درجې ته رسېږی. هر ملت او هر قوم چه ډېر عقلمن او کاريګر اشخاص لری هغه ملت او قوم تر هغه ملت چه د کار اشخاص نه لری ډېر پرمخ ځي او د نورو قومونو د راهنما او لارښوونکی حيثيت مومي.

تر کومه وخته چه پښتنو برجسته اشخاص درلودل او په يوه اتفاق وو، په ډهلی او اصفهان کښې ئې د شهنشاهۍ نغاری ډنګولې؛ خو کوم وخت چه ئې د بې اتفاقۍ بلا په کور ننوتله نو ميړني او د کار مشران ئې يا له منځه ورک او يا په خپل کور کښې ئې تر ګرېوانو سره و نيول کورنيو برخلافيو، بدی او ترېګنی ئې شروع کړې، هم هغه وخت د دوی شهنشاهي ختمه، چه خپله خاوره ئې هم ټوټې ټوټې شوله او پښتانه د نورو دروازو ته ودرېدل، کوم د فکر خاوند چه به په پښتنو کښې پيدا شو خپلو ورونو او تربرو به له پښو و يستو او مغزی به ئې وو مات کړ دالا څه چه په دې به ئې فخر هم

ګڼلاوه. خودې ته ئې فکر نه و' چه دېوه پښتون ورور مغزی ماتول خپل مغزی ماتول دی' هر پښتون چه دخپل مشر یا خپل پښتون ورور بده غواړي هغه که پوه شي په حقیقت کښې دځان بده غواړي؛ ځکه چه په لاس کړې که بوه ګوته هم درد ګوي درست لاس ښه کار نشي کولای. هم دا سبب دی چه خوشحال خان دپښتنو له دې بد بختۍ څخه چه ګور په ګور سره جنګیږي ډېر سخت متاثر شوی او دپښتنو دا بد خوی داسې غندلای

پښتانه واړه بد خوی دی — ګور په ګور ګاندي غور ځي
بو چه سر ګاندي په پورته — بـل ئـې ووهي مغـز ی
د مغل دستر ګـو تـه ئـي — اي خـو شحـالـه نـن اغـزی

خوشحال خان چه د پښتنولۍ او پښتنو د آزادۍ دپاره جنګېده د پښتنو ددښمن ګریوان ته ئې دانتقام دپاره لاس اچولی و' اړدې وچه ددښمن ګریوان پاره کړي او پښتنو ته ملي آزادي وګټي مګر ډېر افسوس دی چه دپښتنو نفاق اوبې اتفاقي دخوشحال خان لاس ددښمن له ګریوانه وکیښ او په خپله ځینې ساده پښتانه دده لاس پېچلو ته تیار شول' ددښمن په منصبو او وغولېدل مګر دهغوی په چل پوه نشول؛ دښمن پښتنو ته بېچاره و' خو دخپلو رشو تو په زورئې پښتانه په خپل منځ کښې په جنګ سره و اچول او ددوی تر منځ ئې دبې اتفاقۍ اونفاق اور بل کړ؛ خو شحال خان له داسې پښتنو څخه په دې ډول شکايت کوی :

چـه مغل و ته مـې و نـړلـه تـوره — درست پښتون مې وعالم ته ښکاره کړ
اتفاق پـه پښتنا نـه کښې پیـدا نشو — ګنه ما به دمغل ګریوان پاره کړ
سره یو تر بل اخته دي په خپل ګور کښې — په نفاق ئې غم وما ته اجاره کړ
دمغـل پـه منصبو لـو غـرهٔ کـېږي — یك باره ئې منځ په نفس اماره کړه

ما دولت ورته ګڼلی و، په توره    دا زما د توري نقش ئې آواره کړ
په منصب چه غولولنه کا نو رڅه کا؟    مغل خدای و پښتنو ته بېچاره کړ

دښمنانو هر وخت د پښتنو له بې اتفاقۍ څخه استفاده کړې ده، کوم دښمن چه غوښتي دي پښتون مات کړي او بائې دلوړ والي مخه ونيسي هغه هېڅکله په توره پښتنو ته نه دي راوړاندې شوي؛ که‌را وړاندې شوي هم دي سو به ئې نه ده وړې، خو پښتون چه همېشه تباه او برباد شوي دي، د خپلې بې اتفاقۍ او کور په کور جنګو له سببه شوي دي، دښمن د دوی منځ کښې شيطانت کړی، د سپين ګوند او تور ګوند، غلجي او دراني، مشرقي والي او جنوبي والي او قندهاري والي خبرې ئې شروع کړي، تربګنۍ او تربورولۍ ئې د پښتنو منځ ته را وستلې، نو رنو د خېبر بر غوندۍ سلامت کښېښستلې دي، او پښتنو هم د خپلې ساد ګۍ له امله بوله بله د کورو په وړانۍ لاس پورې کړی دی او بر ده ره جزوي خبره ئې ترمرګه سره رسولې دي، کورني جنګونه قبيلوي جنګونه شوي او قبيلوي جنګونه اولسي جنګو ته رسېدلي دي او په اولسي جنګو کښې، د ډېرو پښتنو کورونه وران، مځکې خرابې، زلميان مړه شوي دي مګر هغه دښمن چه داد نفاق تخم ئې پاشلی دی همېشه د خېبر بر غوندۍ روغ سلامت ناست وي، نو کسان سره جنګوي او د پښتنو پر جهالت او ساد ګۍ باندې خاندي، ځکه نو خوشحال خان د پښتنو دې ساد ګۍ داغ داغ کړی دی او په پخوانيو پښتنو پسې نول کړي:

که‌ر ښتيا وايم «شېرشاه» داسې نه و،    لکه مونږ بونه پيدا له کوهستانه؟
د خټګو د نفاق له لاسه هسې    يا چه غم ارم له خپله خدا نه
پښتانه چه بې ننګي کا څوک ئې څه کا    ګورستان لره به درومو له ارمانه
دا داغونه چه خوشحال لري په زړه کښې    رغېدل به ئې په تا کېږي سبحانه!

پښتانه هېڅ فکر نه کوي چه دا کور په کور جنګونه، د خپل پښتون

ورور د پښو خاوري ايستل، دخپل تربور سره بده تربګنی کول، څه فائده لري؟ تر څو به دا ناوړه دردونه د پښتنو کور ورانوي؟ څله پښتانه نه وپيژني او خپل دوست او دښمن نه پيژني؟ په دنيا کې هر څوك دخپل قوم سره الفت او محبت کوي، حتی څاروي او حيوانات هم دخپل جنس سره دښمنی نه کوي، ټول انسانان غواړي دخپلو خپلوانو سره خپلوي وکړي، خو غير له پښتانه څخه چه حتی ځني ناپوه پښتانه دوطن له دښمن سره دومره دښمنی نه لري لکه په خپله د پښتنو سره ئې چه لري، نو ځکه خوشحال خان ورته وايي:

بدخوئي به دخپلوانو سره څوك كا | چه په خپله پخپل ځان نه پسندی اندوه
ما چه وليدل اتلس زره قوم مه | دخپل ذات سره الفت کاهر ګروه

خوشحال خان دځينو پښتنو ټيټوالی اوداچه هميشه په بلا لړی دی اودهيڅ ترقی او آرامی مخ ليدلای نشی داټول دنفاق نتيجه بولي او ددامی پښتنو په باب کې وايي:

چه په ديو کښې يو به وی | دهغه دسر جلا ددی
يو دبل په کمی ناست دی | ځکه تل په بلا يا ددی
په نفاق ئې واړه ورك كړل | كه شجاع دی كه جوا ددی
نه د پلار په ويل كار كا | نه په نغته د استا د دی
اول زه دا نور له پسته | څو شته واړه دهيدا د دی.

د الا شكر كړه خو شدا له
چه بنده نه دی آزاد دی

په پښتنو کښې بې اتفاقی اکثره دتربګنی او تربورولی په نامه پيدا کيږي مګر تربور څوك دی؟ تره (کاکا) تربور يعنی د کاکا زوی او تربګنی يعنی له دې لاری څخه خپلوی ـ مګر له بده مرغه اوس چه په پښتنو کښې د تربور يا تربګنی نوم اخيستل کيږي نو که اروېد وتکی

پښتون وی فوری ئې د دښمن او دښمنۍ مفهوم مغز ته راځی – داولې؟ دا ځکه چه ځینې پښتانه ساده ګڼل دی خو په عین سا د کې کی د پاك او صافو وژدونه خاوندان دی؛ نو د پښتنو والی هر دښمن شیطان چه ئې په ګوته روت اودی ته ئې د پل پښتون وروړ په باب ګنبې شیطانی وکړه دغه خبره منی او نور ئې په غرض پسې هیڅ پوښتنه او فکر نه کوی چه د اشیطان په دې شیطانت کنبې څه څه پټ اغراض اری، او دده سره ئې څه غمخو اری ده. نو بې فکره د تربګنۍ څخه د ښمنی جوړه کړی او دخپل پښتون وروړ سره پرنه څه بر خلافی او بدنیتی شروع کړی چه پای ئې و ینو تو یو لو او کور درانو او ته ور سپیږی لکه پرنګیا نو چه په دې سل کاله کی له همدا سی شیطا نته کار اخستی او د پښتنو کورئې وران کړی دی، خو غضب لا دادی چه خپل تر بور مړ کړی یائې کور وران کړی بیا په دې کار ونو ځانته تـور یالی او ننګیالی هم وائی. خوشحال خان داسی پښتنو ته وائی:

ور نه وایه توره کښېږده په صندوق کښې
هر سړی چه مړنی وی په تـلـور و

بلکه خوشحال هغه څوك ځوانمرد ګڼی چه دخپل پښتون وروړ سل بدی ترشا کړی او په دې ډول خپله ځوانمردی څرګنده کړی:

که ځوانمردئې ځوانمردی په دې هلـه وی
سل بدی چه هواره کـړې دخپـل وروړ

خوشحال خان وایی هغه نا یوه پښتون چه د پښتنو ورر نه وتر منځ نفاق اچوی ډیر نالائق دی، یا باید اصلاح کړی شی او یا باید د پښتنوله منځه وو یستل شی، ځکه چه د پښتانه او پښتنو الی د پاره داسی پښتانه دجهالت او نا پوهی، بربادی او تباهی مکروبونه دی :-

چه په ورو نور کښې نفاق کانا لایق دی
یا ئې ښه کړه یا ئې مه گرزوه نور

دخوشحال خان زړه لا پردې خبره ډېر درد کوی چه ځینې بدبخته پښتانه د پښتنې ننگ په کار کښې هم نفاق لری او اتفاق نه سره کوی، حتی خوشحال خان امید نه لری چه په پښتنو کښې لس تنه هم په یوه زړه او دیوې لارې مله پیداشی :

لس په همه سره ونه وینې په ننگ کې
که درست ملك سره پره کړې تر تور سنگه

تاسې فکر و کړیء په یوه لوی اولس کښې چه لس تنه پر یوه لار سره روان نه وی او هر یو ځانته ځانته لارو لری نود داسې ملت او قوم پای به څه وی ؟ ضرور به ئې پای بربادی، تباهی، دنورو غلامی، محو کېدل او تېتېدل وی، دنیا به په سپك نظر ورته گوری او ورپورې به خاندی به، دپردو دلاس آله به وی، گټې به ئې دوی خوری به ئې نور اذلیل، خوار، وږی، تږی، لڅ او بربنډ به گرځی د ترېگنۍ له غمه به سرگرو او نه وزگار نه وی، کار به ځینې پاته د دښمن لاس ته به احتیاج او په کازه مغزی ولاړوی.

د دښمن دپاره به خپل ورور وژنی او د دښمن دپاره به دخپل ملی مشر مخالفت کوی ... داسې قوم که غواړیء و پېژنیء نو د پښتون اولس ته راشیء او ددوی کور په کور بې اتفاقیء او جنگونه وگوریء، تاسې به ووینیء چه د پښتنو ملی مشران په سل کښې انیا دخپلو ځینو ساده پښتنو دلاسه پامره، پاورك او پایې قدره شوی دی، ځکه نو خوشحال خان وایی :

په بل غشی ټوپك هیڅ وېشتلی نه یم
که وېشتلی یم خو بیا په خپل ټوپك یم

خوشحال خان د پښتنو بې اتفاقي نا کام کړی او دده لوبې لوبې نقشې ئې ګډې وډې کړې دي، حتی په ملیونو پښتنو کښې زرجنګیالي زلمیان اشي مېندلای، دا ځکه چه نفاق له پښتنو ځخه د کړو نیزو دېوال جوړ کړی دی چه هرځوئې سمون نه سمېږی، د خوشحال خان دژوند هغه غنیمت وختونه چه دده باید د پښتنو لیږ او پښتونخوا دپاره په کښې دېر اوی لوی قومي خدمتونه کړی وای، د کورنی بې اتفاقی په اوارولو کښې تېرشول، دی داسې افسوس کوی:

یګانه څوا نان که زړله ما سره وای          نور زما ؤ، په پنجاب باندې یرغال
له هر ځو ئې سا زوم رانه سا زېږی          پښتا نه دی د کړو کانو دېوال
خدای په هومره مهلت ور کړي په دنیا کښې          چه کازه کاروندسم کاندي خوشحال

خوشحال خان تعجب کوی چه دیوه پلارزامن څنګه بودبل په ځان اخته دي؟ شور او غوغائې دځه دپاره ده؟ بله چاره نه وینی نودعا کوی چه ګواندی خدای د پښتنو دا نفاق ورك ا پر ځای ئې اتفاق ور کړی:

دیوه پلار ره زو واسي          سره تل شور وغوغا
که څلویښت دی که پنځوس دی          سره واړه شا په شا
مال و ملك دولت مې ژغوره          په دا حال کښې ربنا
اتفاق پکښې باقي شی          دا نفاق ئې شي فنا

خوشحال خان هغو پښتنو ته چه د بې اتفاقی له کبله ئې خپل پردی کړی دی داسې وائی:

خپل دی پردی کړل پر دی به خپل نه کړې
خصلت دی بدشو خصلت به بدل نه کړې
غم دی په برخه شو ښادی به تل نه کړې
چه نا قابل ئې ځان به قابل نه کړې

خوشحال خان د دښمن په مقابل کښې د پښتنو د ناکامۍ یو مهم سبب همدا بې اتفاقي ګڼي ارښتیا همداده که پښتانه په خپل منځ کښې اتفاق سره ولري هیڅوک د دوی د ترقۍ او لوړ والي مخه نیولای نشي، که څوک پر پښتنو غالب شوي وي نو هغه وخت به شوي وي چه دښمن د دوی له بې اتفاقۍ څخه کار اخیستی وي، او دوی ئې په خپل منځ کښې یو له بله سره اچولي وي همدا نکته ده چه خوشحال خان ئې یادوي :

بخت د مغلو پښتانه نه پرېږدي — چه اتفاق وکا په توره زده کېږدي

ګڼه که څه هم مره پښتانه نه دي — چه ئې په یاد کا د مغلو زده رېږدي

خوشحال خان د دې دپاره چه پښتانه ښه پوه شي چه بې اتفاقي د دوی کور وران کړی دی او که پښتانه ښه آزاد او د نورې دنیا د انسانانو غوندې ژوند غواړي نو باید سره متحد او متفق شوي وسي، یو د بل ملاتړي، یو د بل سره کومك وکړي او ټول اولس په یوه سلا د پښتونخوا او پښتنو د ژوند د اوږدوالي دپاره زیار وباسي، زحمتونه وګالي، خپل کمزوري ورور نه قوي او خپل ناپوه ورونه پوه کړي، خپلو بې کاره ورونو ته کار پیدا کړي او خپلې شاړې ځمکې ودانې او خپل وران کورونه جوړ کړي . . . . . نو د ملت او قوم د افرادو ژوند د لاس د ګوتو سره مشابه ګڼي، وائي که په لاس کښې یوه ګوته هم نه وي نوري ګوتې پوره کار نشي کولای او یا که یوه ګوته خوږه وي نوري ګوتې هم ورسره دردمنې کېږي او یا که ګوتې په خپل منځ کښې کومك سره ونکړي او په اتفاق ونه خوځېږي په هر کار کښې ناکاره پاتېږي :

د قوم یا د ملت د افرادو هم داشان مثال راوړی او وائي :

پنځه دي ګوتې دي که یوه نه وي — د نورو ګوتو چار به دې څه وي ؟

د لاس خوبي ده په پنځه ګوتې — چه سره جوړې وي کار به دې ښه وي

دپښتنو په هره قبیله کښې داسې ډېرې بې ځایه تربګنی او ګوندې شته چه له بده مرغه ئې پښتانه د دنیا د نوي ژوند څخه لیرې ساتلي دي او پخپل منځ کې سره اخته دي، د الاڅه چه دغینو پښتنو بدې او ګوندې په یوه نسل باندې نسه تما میږي څوځو نسله د تور ګوند او سپین ګوند غلجي او درانی خبرې پاتېږي او ممکن چه اوس په پښتنو کښې داسې دښمنان هم سره وي چه شلم نیکه ئې کوم تربور وژلي وي او شلم نمسی ئې بدپالي او دغه بل نیکه د نمسي وینو ته تږی ناست وي؟! دا په کوم دین ، کوم مذهب ، کوم کتاب ، کوم انسانیت کښې روا او راغلي دي چه دوه انسانان، بیا خصوصاً دوه مسلمانان، په تیره بیا دوه پښتانه ورونه په سوو سوو کلونه نسل بالنسل په زړو کښې یو بل ته کینه سره وساتي او د یو بل وژلو ته دې تیار شي ؟ ؟

خدای خو داسې خلك نه خوښوي، رسول د خدای خو له داسې کسانو څخه نفرت اری ! انسانیت هېڅکله دا منلی نشي ! مسلماني خو انسانان ورورولۍ ته رابولي ! ټول آسماني کتابو نـه انسانان صلح او اتحاد ته امر کړی دی ، پښتنو اله خو هېڅ دبې اتفاقۍ دخبرې اورېدلو ته تیاره نه دد نو نه یوخبر او نـه پوهېږو چه دغینو بدبختو نا پوهو پښتنو دا بدۍ، تربګنی او ګوندې له کومـه ځایه او د کوم عقل او علم په مشوره خپل منځ ته راښکلي دي ؟؟ په نه داد عقل مشوره ده نه د علم، خاص د نا پوهۍ او ساد ګۍ له کبله د پښتنو منځ ته بې اتفاقي راغلې ده او د پښتنو پښتو ، پښتنو اله او پښتو نخو ئې ورانه کړې ده نو ځکه خوشحال خان له خدا یه پښتنو ته داسې اصلاح غواړي :

خدای دې ورکړ دپښتنو کـا دادرې تو که

یو بد جهل ، بل بد قیست ، در یم نفاق

د یوه ملت یا یوه قوم څخه داسې ناوړه خویونه وړ کول او قوم دلوړ والی خوا ته بیول دقوم دمشرانو کار دی چه خپل ناپوه کشران پوه کړي دهغوی

له مغز و څخه د بې اتفاقۍ فکر و باسئ مګر دېر افسوس خبره خو داده چه اکثر د داسې بدو خوېو رواجونکي پخپله ځينې مشران وي او داهغه مشران دي چه شخصي غرضونو دوی ړانده او کاڼه کړي دي او د همدې شخصي غرضو نوله کبله د ملي او قومي ورور سره ه بلکه د خپلو خپلوانو او خپلوانو سره مخالفت. کوی، داسې کسان د خپل شخصي غرضونو د پاره هرې بې ننګۍ او بې پتۍ ته تيار وي حتى ملي ګټې او فائدې هم تر شخصي غرضونو قربانوي تر پښتو پښتنوالي او قوم تېرېږي مګر تر خپل شخصي غرض نه تېرېدلی نشي نو ځکه خوشحال خان دې خو د غرضو ته وايي:

کام د زړه که هر څو ښه دی          تر ايما نه دی ښه نه دی
چه ئې دا اند ښه نه وی          هغه کس سړی په څه دی
ته ئې وينې وينې په ستر ګو          غافل وينې نه دی اوده دی

تر دې وروسته نو خوشحال خان د اتفاق فايدې او صفتو نه بيانوي، پښتنو ته وايي چه اتفاق ګلزار دی او نفاق خارزار که تاسې غواړئ چه خار ګشان اوسئ له نفاقه مه لېرې کېږئ او که د ګلو مشتاق ياست نو د اتفاق لاره ونيسئ:

چه درست ګلزار ئې دا تفاق دی          چه درست خارزار دی ګندهٔ نفاق دی
خار دی به بخره د خار ګشانو شي          هوښيار د ګلو د ګلزار مشتاق دی

د خلقو دولت په اتفاق بولي خوار هغه څوک ګڼي چه د نفاق په بده لار روان وي خو پر دې افسوس کوي چه په ژوند کښې ئې هيڅ يو داسې ملګري چه يکرنګ وي نه دی موندلی، نو وائي:

دولت د خلقو په اتفاق کښې دی          هغه به خوار شي چه په نفاق کښې دی
زوړ شوم يو يار مې يکرنګ و نه ليده          زړه مې تراوسه په اشتياق کښې دی

اول خو په پښتنو کښې د دوی د بې اتفاقۍ له سببه مشران نه دي پيدا شوی که پيدا شوي هم وي د خوشحال خان غوندې به د خپل قوم د لاسه ورک يا فرار شوي

وی، که له دې نه‌هم راتېر شی نوبیا پربد وواوړی دخان اوملك او حاکم په نامه ځان ځینې ورك شی، دغریب قوم غونې به خوری او داصلاح فکر به ئی له سره په‌سر کښې نه وی، نوځکه خوشحال خان پښتنو ته یوه مشران غواړی چه دپښتنو له منځه بې اتفاقی ورکه کړی اودنایو هو مشرانو له لاسه اولس وران وینی دی وائی :

خدای چه‌ورك کاندمېړونه په اولس کې ... په‌سنوی هغه او لس و ته بیاننګه
یاده کوړ په کوړ اختنه شی په‌میرځیو ... یا به‌ملك‌و مغل‌ور کاندی‌بې جنګه

خوشحال‌خان دپښتنو دبې اتفاقی غم خوړ، چه دبې اتفاقی اوښ‌دده د کور منځ ته هم چوك شو او دنفاق بلا دده په خپل کورورنده وتله‌دده زامن ئې لدده څخه بېزاره کړه اودده د کور نې دیوالی رسیه ئې رشلوله، نوځکه خپلو زامنو ته په قهردی، وایی :

زمازویه دننګ نه دی نه‌ر بېزار دی ... پرې پوهېږم چه هم‌هواره مرداردی
نه‌ئې‌لویه اندېښنه‌نه‌ئې‌لوی کار شته ... د مغلو د طباخ و تـه دیـا ر دی
د منصب دا ضافو خبری کا ندی ... په عزت په حرمت کله‌خبر دار دی
اتفاق یکا نکـی ئـې سره نشتـه ... همګی روان په‌بېله بېلـه لاردی
نه‌دنوم دی نـه دشرم نه دننـګ دی ... اندېښنې ئې دنا کس د ناسردار دی

ددنیا دیری تباهی‌دهغه قوم دی چه‌اتفاق ولری! زحمتونه او غمونه‌هغه چاله دی چه‌یادروغ وایی‌او یا په نفاق اخته‌دی خوشحال خان وائی :

خوځو تباهی دی په‌دا آفاق کښې ... واړه به‌بیا مومې په اتفـاق کښې
خوځو غمونـه یـا محنتـو نـه دی ... یا په دروغ کښې یا په نفاق کښې

په‌دوه رنګی کښې فائده نشته، که‌پښتانه سود غواړی باید په‌خپل منځ کښې یك رنګ اوسی دخوشحال خان هم داغرض دی‌چه‌وایی :-

آفت که ګوري په بې تنګۍ کښې دی  نکبت دی هر په دل تنګۍ کښې دی
ماله دو ورنګو فائده نه لیده  که سود دی سود خو په یکرنګۍ کښې دی

خوشحال خان د پښتنو دپاره داسې د اتفاق دنیا غواړي چه په هغه کښې د پښتنو هره طبقه کښته اوده، بلکه او غریبه طبقه په آرامۍ او سرلوړۍ ژوند وکړي داسې اتفاق نه غواړي چه یوه طبقه ئې په خپل منځ کښې ولري مګر له بلې طبقې بدوړي او بیا زده نه ور نژدې کوي، ځکه چه هره طبقه پر خپل ځای او خپل کار کښې لازمه او محترمه ده حتی خوشحال خان د نا پوهانو طبقه هم بیکاره نګڼي بوازې دومره خبره ده چه هغه باید وروزله شي نو وائي -:

که نادانان دی که هوښیاران دی  ګمان دا مکړه چه بیکاران دی
خوار تر خه ئې واده یکار ګڼه  چه پیدا شوي په دا ښاران دی

خوشحال خان وائي که دوه ژوندونه په یوه اتفاق کوم سخت کار ته اقدام وکړي هغه کار به که څه هم ډېره په شان سخت وي د اتفاق له برکته نرم شي:

دوه ژوندونه چه یو شي غر به هم پاره پاره کا
خوار تر یکرنګۍ چه نه متوونه را نه کاره کا

۞ ۞ ۞

مشورت او مصلحت: کوم وخت چه د پښتنو منځ کښې اتفاق راغیء

نو دوی مجبور ربږي په هر کار کښې د یو بل سره مشوره او مصلحت وکړي نو هر کله چه کارونه په مصلحت او مشوره شي نو ر به هیڅ نیمګړتیا په کارونو کښې ونه وینې او چه کار ونه سم شوه د پښتنو داوران ژوند به هم سم او ښه نه په یه منځ ودانۍ ولاړ شي او د جهان په ژوند یو قومونو کښې به شمار شي! ځکه چه د ژوندون ټولو کارو نو اساس په مشوره او مصلحت بنا دی او له آدمه تر دې دمه هر مهم کار چه پای ته رسېدلی د مشورې او مصلحت له برکته دی نو هم داسبب ؤ چه پخوا نیو پښتنو به په هر کار کښې خصوصاً په قومي کارو

ګې جرګې اومرکې کولې د پښتنو مشر او سپين ږيري کډبه هر څو پوه او هوښيار هم ؤ له خپلو ملګرو او خپلو کشرانو سره به ئې مشوره کوله په خپل سر ئې کار و له نه اجرا کول. مګر هغه وخت چه د پښتنو په منځ کې د بې اتفاقۍ او نفاق بلا را ګډه شوه او کور په کور، کلي په کلي، قوم په قوم بدي شوه نو پښتانه تو تې تو تې او هر ه توته پر بېلو بېلو لارو روانه شوه نه کشرانو د مشرانو پر خبره غوږ نيوه او نه مشرانو د کشرانو سره مشوره کوله نو نتيجه دا شوه چه کشران له مشرانو څخه په نفرت شول او له مشرانو څخه مستبد ان او ظالمان جوړ شول او پای ئې همدې تېټوالي ته را ورسيده چه اوس ئې وينو ځکه نو خوشحال خان اول د اتفاق غلبلې و وهلې او ورو وسته ئې د پښتنو پر له بله سره مشوره او مصلحت مهم او لازم وباله بلکه دی د کائناتو بند و بست هم په خبرو کړې چه وائي:

بند و بست د کائنات دی په خبرو  بوتر سله صد قه شه سل تر زرو

خوشحال خان د پښتنو د پاره مصلحت يو قومي فرض ګڼي او هلته چه څلور پښتانه د مصلحت د پاره سره کښيني هغه ځای د دوی په مصلحت نو راني بولي او که په اخلاص څلور تنه په اتفاق لاسونه پورته کړي او دعاو کړي د هر راز فتح او نصرت ور پرانيت کېږي — نو ځکه وايي:

د نمانځه تر قضا ګر نه د اقضا ده  چه قضا شي د څلورو مصلحت
نوراني کا هغه ځای چه سره کښيني  د پرينه څلور هوښيار په مشورت
په اخلاص چه په دعا لاس ونه هسك کا  ور به په پرانيت شي د فتح د نصرت
بې کنګاشه به هيڅ کار په لاس وانه خلې  چه خبر دي د کنګاش په برکت(۱)

خوشحال خان په هغه کار کښې چه بې مصلحته و شي هيڅ برکت نه وينې دده په نزد خير و برکت هلته دی چه مصلحت وي — دی وائي:

---

(۱) کنګاش ترکي کلمه ده چه مشورې او جرګې ته وايي؛

په هر کار کښې مصلحت ښه      خپل پر دی ته نصیحت ښه
چه ار بر له مصلحت شي      کله خیر بر کت شي

مصلحت او مشوره هغه څوك نه کوی چه خود پسند وی او هر څه ئې د ځان خوښ وی داسې خلك کمشران وی که کشران په اجتماعی دنیا کښې دوې پیسې قیمت نه لری داسی کشر نې سره او هسی مشر مستبد بلل کیږی' خو هغه څوك چه هوښیار او پوه وی هغه به هیڅ کله نه بې سره کیږی او نه مستبد او نه به پوا زی په خپل عقل او فکر دومره غره وی چه هیڅ مشوره که څه هم مفیده وی نه اروی دا لوی جهالت دی. ځکه نو په پښتنو کی متل دی «هر څو چه هوښیار یې کم عقل پوښتنه !» خوشحال خان هم وایی :

چه د خپل عقل وبل کا هغه کله خرد مند دی
چه پوښتنه مصلحت کا هم هغه د عقل بند دی
چه می فهم فکر و کړ په دا خپله دانائی کښې
بل نادان راښکاره نشو که نادان دی خود پسند دی

خوشحال خان د هغه چا ضرر ضامن کیږی چه په مصلحت کار و نه کوی دا ځکه مصلحتی کار و نه ضرر نه لری او وایی چه سړی په یوازی سر رستم کېدلای نشی همدا راز پښتو متل دی چه« له یوه لاسه ټك نه خیژی» خوشحال خان خپل ضمانت داسی بیانوی :

که سړی په مصلحت کښې لړ بر نشی      زه ضامن چه د ده کار به ابتر نشی
درستم د مړ نتوب خبری او رم      ولې څوك به بې لښکره صفدر نشی

هغه څوك چه بې مصلحته کار کوی که څه هم ډېر دولت و لری بر کت به ئې ونه وینی او هر څو که ئې بخت بیدار وی بیا به هم په ژوند کښې بې ندامته بل څه ونه گوری نو خوشحال خان وایی :

هر څوك چه كار كاېې مصلحته هيڅ به و نه خوري برله دواته

كه بخت ئې هر څو كار و نه ساز كا خالي به نه وي له ندامته

مګر پخپله مصلحت هم دانائي او هو ښياري غواړي څه آسانه كار نه دئ

خوشحال خان وايي :

چه كار د چا مشكل شي په تد بير و بله كښېنې

دا كار څه اسان نه دي دانائي ورلره بويه

خوشحال خان مصلحت د توپك په شان او د سړي مقصد د هدف غوندي ګڼي هدف چه څوك ولي هغه بايد لومړي ډېر ځير شي پس له هغه ګذارو كړي ! همداشان څوك كه غواړي خپل مقصد ته ورسيږي لومړي بايد مصلحت او غور وكړي بيا نو اقدام شروع كړي ' خوشحال خان دا مثال څنګه ښه واضح راوړي :

مصلحت لكه تو پك دي ستا مراد لكه نخچير

كه دي ښه ګذار په كار وي قراول ئې كا ښه ځير

په ګذار كښې هو ل مكړه په خپل ځان او سه خبير

نور ماشه كړه بالدي كو زه ارو بر مكړه انظير

زه خوشحال خټك ضامن يم كه خطا دي شي يو تير

تر دي ځايه پوه د مصلحت او مشورت خبري راورسيږي نو خوشحال خان بيرته د اتفاق خواته ګرزي او د پښتنو د اسي اتفاق او يو والي غواړي چه تول پښتانه په يوه زړه ' په يوه خوله ' په يوه قومي او ملي لاره سره روان شي او تول په يوه سلا د پښتو' پښتنو الي او پښتونخوا د لوړ والي د پاره ملاوي وتړي او د ننګ په كار كې پټ او ښكاره له قندهاره تر اټكه سره يو شي نو وايي :

درست پښتون له قند هاره ترا ټكه

سره يو د ننګ په كار پټ او اشكا ر .

نو پښتنو ! وينې شیء !! دنیا ډیره ګړندۍ پرمخ روانه ده ـ

په دنیا کښې بوازې تاسې ترهر ملت اوهرقوم نه وروسته پاته شوی یاست !

حال داچه په پخوانیو زمانو کښې ددنیا ترډیرو ملتو دمخه واست !

څو تر څو غفلت ؟؟ څوتر څو دخپل کورورا نول ؟؟

څوتر څو خوب ؟؟ څـو تـر څـو نـاپـوهـی ؟؟

څوتر څو بی اتفاقی ؟؟ څوتر څو ددښمن په خوله غولیدل ؟؟

څوتر څو تربګنی اوګوندی ؟؟ څوتر څو دغلجی او درانی خبری ؟؟

پریږدیء خدای ته وګوریء دابدخویونه پریږدیء لږ دنیا ته وګوریء وینښ شیء !!

خپله پښتو ، پښتنواله او پښتو نخوا پخپل لاس مه ورانویء !!

دخوشحال خان داله درده ډکه ناره واوریء چه تاسی ته وایی :

پښتنو ! اتفاق وکړیء ، نفاق پریږدیء !!!

خوشحال خان خټک

(۳)

# د پښتني خاورې سره علاقه ولرئ!

د پښتو پانې خوره په غره کښې او سمه
نه چه پان د هندوستان خورې زما جنده!

پښتانه چه هر ځای وي د پښتني خاورې سره علاقه او مينه لرې نو دغو ازي مينه درلودل کفايت نه کوي بايد هر پښتون د پښتني خاورې د ساتنې د پاره دزړه وينې او درو زنې د پاره ئې د ننډې خولې توئې کړي. مرګ او مړينې مګر د بل چا تجاوز پر پښتني خاوره و نه مني او په دې هم بايد هر پښتون پوه شي چه پښتني خاوره يوازې هغه ځای ته نه ويل کيږي چه دی او دده کورنۍ پکښې اوسي بلکه هر ځای چه پښتانه اوسيدلي وي او ددوی د نيکونو په هډونو هغه مځکه راپوره نه شوې وي هغه پښتني خاوره ده. نو يو پښتون چه د پښتني خاورې په هر ګوټ کښې اوسيږي بايد د ټولې پښتني خاورې سره علاقه ولري د پښتني خاورې د يو سر پښتانه بايد د بل سر له پښتنو سره دزړه رابطه وساتي په خوښۍ ئې خوښ او په غم ئې غمجن وي.

که د پښتني خاورې په يو ګوټ کوم فشار راشي بايد ټول پښتانه په هر ځای کښې چه وي په يوه سلا دغه فشار دلرې کولو د پاره ملاوتړي او که ضرورت وي د خپلو پښتنو ورونو د آرامۍ د پاره خپل سرونه هم پر ميدان کښيږدي او بالکه کوم د پښتنو او پښتنوالې دښمن پيداشي چه وغواړي د پښتني خاورې څخه کومه ټوټه جلا کړي، نو په داسې وخت کښې د ټولو پښتنو ملي فرض دی چه د غزا ګاري ميدان ته حاضر شي او په هره قرباني چه وي د خپلې پښتني خاورې څخه د پردي مردار لاس نه لنډ

کړی او پرې نه ږدی چه پښتنی خاوره ټوټې ټوټې شی او یا د نورو د خاوری
سره ئې څوك ګډه کړی .

ملی مشر خوشحال خان چه د مغلو وزیرانو مقابلې ته ملا تړلې وه د همدې
مقصد دپاره ــ مګر ځینو هغو ناپوهو پښتنو ته چه په پردی پان غولېدلی وو ،
د وطن او پښتنی خاوری مینه داسې ورپیادوی :

که مې بو ځله رسیده وشی تر سینده      نور دی هغه وینم په نورو سترګو هنده
نه به سترګې د سړی په چاخوږې شی      نه ئې ماته په ــه او بو شی د چــا قنده
د بېپلو پانه خوره په غره کښې ازسه      نه چه پان د هندوستان خورې زما جنده

بل وخت چه به ځینو ساده ګانو پښتنو د بل هیواد تعریفونه کول او یا به
ئې تر پښتنی خاوری بله خاوره ښه ګڼله، خوشحال خان په دېر قهر دهغوی
خولې ورماتوی او د بل تر چنبا ګل د وطن خار ښه ستایی :

خدا یه ماتی هغه خولې کړې      چه به وایی هندو بـار ښه
ښه په هند کې چنبا ګل دی      تردا ګـل د وطن خـار ښه

خوشحال خان چه خپل پښتنی حکومت په خپله پښتنی خاوره کښې نه وینی
او په هند کښې نظر بند ګرزی نو هند پرده دوزخ او د بل حکم پرې زندان
دی ځکه نو وایی :

هند په ما بــا ندی دوزخ شه      که په نور عــالم جنت دی
د بل حــکم پرې زندا ن شی      چه په خپل حکم عا دت دی
نه خپل زر کړل رانیول شته      نه خپل حکم حـکو مت دی

خوشحال خان هېڅوخت دهندوستان دعیش وعشرت، نازو نعمت په وطن
کی خپله سپېره پښتونخوا او پښتنی خاوره هېره کړې نه وه، تل ئې لــه هغه
ځایه خپلی پښتنی خاوری ته سلامونه رالېږل او دائــې آرزو وه چه کله

بوئي دخپلو غرو سرې اوبه په نصیب شي، اوخپله دا آرزو په داسي الفاظو کي څر ګند وي :

که ګذر په «خیرآباد» وکړې نسیمه!

یادي ګښت وشي د«سرای» دسیند په سیمه

په بار بار سلام زما ور ته عرضه کړه

ور سره زما د لوری څو تسلیمه

ابا سیند وته ناره وکړه په زوره

و«لنډي» ته وینا، وا یه حلیمه

ګوندی وی چه بیا می ستاسي جام نصیب شي

په «ګنګا، جمنا» بونه ؤ، له قدیمه

که دهند دهوا زار کړم څو به زار کړم

د اوبو بلا ئي لا بده عظیمه

که دلهر او به ښښې کولمې پرې باسي

هم دهر کوهی اوبه نه وی بې بیمه

چه سرې اوبه دغره نشته په هند کښې

نرې تر به که وا نه پک دی له نعیمه

همیشه به په هند نه اوسې خو شحا له

عا قبت به عا صی وو زی له جحیمه

داتوله غندنه ددې دپاره وه چه خوشحال خان پښتنو ته دپښتني خاوری مینه او محبت وښیی او دوی ته وښایی چه پښتني خاوره دپښتنو ده او پښتانه باید په خپله پښتني خاوره کي واوسي، نه دا چه ددوی خاوره دپردو دخاوری سره ګډه شي ځکه چه پښتانه دخپلی پښتني خاوری خاوندان دی، او دخپلي پښتني خاورې واك باید دبل چا په لاس کښې ورنه کړی او پښتانه بې خپلې

پښتنی خاوری بلځای نه آزاد ژوند کولای شی او نه په پردیو وطنو کښې
د پښتون قدر کېدلای شی څنګه چه اندېږي ده :

مـو لا دی خپـل وطـن تـه بـو زه
پر دی وطـن د مړو قـدر کمو ینه

د پردی وطن بوټی ار خا شاك لا په سری خو لې لګوی، یوه پښتنه انجلۍ
چه له پښتنی خاوری جلا شوې ده د پردی وطن نفرت داسی څر ګندوی :

مـوری ! لـنډی کمیس را و کـه
پر دی وطن دی ترخی خولې را لګوینه

خوشحال خان هم په پردی وطن کی خوش نه دی، خوښی ئې یوازی په خپل
وطن ده چه وایی :

دخوشحال دزړه خوښی نشی بې سرایه
خپل وطن ئې پر هرچا بالدی کشمیر کړ

دپښتونخوا سپېرې ونی لاهم پښتنو ته چندن وخاوری ئـې مشکـو عنبر
او کـانړی ئې دسرو زرو په شان قیمتی دی ـ خوشحال خان وایی :

دوطـن ونـی چنـدن اګـر دی    خاوری ئې واړه مشکو عنبر دی
که ئې سرای اورو وته سنګپر دی    کـانړی ئې واړه ماته سره زر دی

ځینی نا پوهان چه دخو پیسو، یا دکوم منصب دپاره ئې خپلې خاوری ته
شاه کړې وه او دنورو دنو کوی په غرض به ئې له خپل ګران وطن څخه کوچ
کاوه خوشحال خان ئې داسی تنبیه کوی :

درزی لا ګز لری، مقراض سو زن لری

یوچمدر کوتـی خو شحـال خیرن لـری

کوچ ئـې آسان دی مشکل هیڅ نـه دی

غـم د یـا را نـو در د د و طـن لـر ی

هو، څوک چه حقیقي پښتون وي هغه باید دوطن دردواري اود وطندارانو غم ورسره وي، او څوک چه دوطن درد لري، باد وطندارانو غم ور سره وي هغه هیڅکله پښتني خاوري ته پرېږدي او نه د نورو تر کړي منې، اوغیر له خپلې خاوري څخه نور هرځای باندي سقروي، لکه خوشحال چه وایي:

نور جهان سقرشو باندي سرای دار القرار دی
کله به خوشحال دار القرار له ور د رومي

خوشحال خان چه دپښتني ننګي پر ځای کړ لو او د پښتني خاوري د آزادلو دپاره د مغلو بندته ځان ورکړ او په زنځیور کښي ددښمن په لاس کښي بندي ؤ، نود پښتني خاوري مینې او عشق ئې په زړه کښي داسي لمبې وهلې چه ویل به ئې:-

پښتني جونې دې زلفي باد ته نیسي
چه شمال ئې دوی راوړي په زنځیور کښي

بل وخت چه دپښتنو دننګي دپاره غره، په غره، پهلوډو ژورو سرګردانه د پښتني خاوري د یوې ترڼې په ننداره ئې هم زړه خوشحاله دی او ځان دفلک منت بار بولي چه وایي:

لامنت لرم په داهم له آسمانه  ننداره دا باسینده له «میر کلانه»
په «تیرا» په «سوات» په خوړه ور پهورشوم  بیا می کوم لوري ته نه بیایي آسمانه

د «لنډي سیند» او «باړې» اوبه د شربتو غوندي په خوشحال خان خوږي لګي او د «ماترې» دغره لړه والي داسي ستایي:

یا اوبه د لنډي سیند یاد باړې دي  چه په خوله مي ترشربت لګي شیرینې
دماترې غاښي لیغ دروميو آسمان ته  په خاته خاته لنډېږي باندي سپینې

خوشحال خان دپښتني خاوري په اکثرو سیمو کې ګرځېدلی دی اوټولي سیمې ئې ښه ستایي. خصوصاً خپل تاټوبی «سرای» ئې ښه خوښ دی، تاسي ګوری د سرای جغرافیائي وضعیت څنګه ښه بیانوي: -

رحمت په اګوړی شه چه ئې و نیوه ځای سرای

چه ښه فهم ئې و کړې باور و کړه ځای دی

توړ غرئې د هوډې دی تر تیر ا یورې سم نللی

نیلاب واندې دوا دو عجب سره ښې په پای

پرې سازه لو یه لار د هند وستان وخرا سان ده

ګذر ئې داتك دی چه ترې ترس کاشاه ګدای

هنر فیض ددې جهان څه چه یا دیږی پرې را درومی

چه ملك ئې بارانی دی څه بهار لری های های

که سوات که اشنغر که پښور دی دامډګو نه

رجوع لری و ده ته فیض ور درومی ده ر ځای

په هر لوری ئې ښکار شته دشاهین دباز او هر څه

واه واه کاله یا نه ئې چه ئې ښکاردی دلربای

ځوانان ئې چاق، دزست، چست و چالاك دی په هر کار کښې

خوښی ستر ګی سپین او سربلنده بالا دی په نمای

آسمان ځنې جدا کړلاس دچا رسی آسمان ته

خو شحال له سرایه نه دی جدا شوی په خپل رای

له دې تولو څخه داخر ګند یږی چه ننګیالی پښتون خو شحال خان خټك

د پښتنې خاوری سره ډیر زیات عشق درلود او هم ئې پښتنو ته ویل .

ښې دی تر منګو د وطن خاوری

تـودې او بـه دی دوطـن وا وری

❀ ❀ ❀

## پښتنې خاوره کوم ځای ته و یلې شو ؟

---

د مخه موو ویل چه په هرهغه ځای کی چه پښتانه د ګـلو ګـلو راهیسی میشته وه

او یا میشته دی او دپلرو او نیکونو هدیره ئ جوړه ده هغه پښتنې خاوره بلله کیږی

له اسلام قلعه او هامون ( سیستان ) څخه را نیولې تر اباسینده پورې
او د آمو له غاړې څخه بیا تر بحیرۀ عرب او له بلې خوا له چترال څخه تر بحر هند
پورې پښتانه پراته دي خو د پښتنې خاورې ځینې ټوټې انګریز او په غیر حق
د پخوانۍ هندوستان او ننني پاکستان سره ګډې کړې او هغه ئې د دیورنډ
د منحوس او فرضي خط په واسطه له پښتنې خاورې څخه جلا کړې دي ، مګر
او سېدونکي ئې بیا هم پښتانه دي او هیڅوک نشي کولای چه د دوی زړونه له پښتنې
خاورې څخه بېل کړي ، بلکه نن سبا وینو چه هغو ټولو پښتنو خپله خپلواکي
غوښتې ده او غواړي ځانونه په آزاد پښتونستان کې شامل کړي —
دا ځکه چه دوی پښتانه دي او له پښتنې خاورې سره علاقه او مینه لري نه غواړي
چه تر ابده نو د دوی د پلار او نیکه هېوونه د نورو تر پښو لاندې وي او یاد دوی
واک د نورو په لاس کې وي او دا ئې طبعي حق هم دی .
دا ټاک د سیند څخه مخ په کښته جنوب ته د ملتان او سیند په خوا کې او بیا د اباسیند
نه مخ په لمر لوېدو او د شمال خواته پلر ګنې پلر ګنې پښتانه پراته دي ، بر سېره
په دې د پنجاب او سیند په صوبو کې د اباسیند په لمرخاته غاړې د پښتنو داسې
اولسونه پراته دي چه اوس هم پښتانه دي ، خپله ژبه او روایات ئې ساتلي دي لکه
چچ ، عیسی خېل ، ساغوري ، داؤد خېل ، مکهړ ، میانوالي ، ډېرۀ غازي خان په پنجاب
کښې ـ او شکارپور ، جیک آباد په سینده کښې . لنډه دا چه له چترال څخه
نیولې مخ په جنوب تر بحر هند پورې د پښتنو غټې غټې قبیلې پرتې دي چه
د ځینو قبیلو نومونه ئې دا دي : —

یوسفزي ، مندڼ ، زاړه سواتي یعنې اتمانزي ، تارخېل ، چارخېل ، ا کازي ،
مشوانړي ، ماموند ، سالارزي ، اوتمان خېل ، مومند ، صافي ، رانړي زي ، محمدزي ،
خلیل ، خټک ، اپریدي ، شنواري ، ورکزي ، توري ، بنګښ ، بنوڅي ، وزیر ، دوړ ،
مسعود ، نیازي ، بیټني ، سدوزي ، نورزي ، اڅکزي ، کاکړ او نور ...

دهغو غټو علاقو نومونه چه د پښتنو د اقبیلي په کښې اوسیږي او انګریزانو غوښته هغه سره ټوټې ټوټې او جلا کړې دادی : ـ

ګلګت، هونزه، نګر، یسن، چیلاس، ( دجمو، او کشمیر مربوطات) ګبر، بګرو، سیو، پټا لس، جالکوټ، نندیار، کاګان، اګرور،

اوګي، تیکری، اکازو دره، سیند کری، امب دربند، چترال، دیر، سوات، باجوړ، ارنګ برنګ، مهمند، پېښور، مردان، ګنداب، ګیا کول، کوهات، تیرا، کورمه، وزیرستان، (دمیرانشاه وانه) بنو، ډېره اسماعیل خان ډېره غازي خان غربي برخه، ټول بلوچستان چه په قلات، لس بیله، خاران کوټه، هرنائي، سیوی، چمن، او پښین، ژوب، مشتمل دی (۱) چه په دی ترتیب په دې علاقو کښې تقریباً او یا لکه یعنې اوه ملیونه پښتانه دی چه په یوه سیمه او یو ځادر کې سره اوسیږي او ژوند تېروي، علاوه د افغانستان له خاورې د اټولي علاقې پښتني خاره بلله کیږي او دخوشحال خان سره دټولي خاورې د آزادۍ او اتحاد غم ؤ، مګر څنګه چه پښتانه دغفلت په خوب بیدوه نو ځکه ده ورته ویل :

سرئې هوري قند هار بل ئې دمغار دی
تر دا منځ واړه مېشتــه همــه عبث دی

خوشحال خان یوازی دهغو پښتنو د آزادی زیارنه یوست چه دی پکښې اوسېده بلکه دټولو پښتنو اتحادئې مقصد ؤ، غوښته ئې چه یولوی پښتــون جوړ کړی. نوځکه ئې پر کابل چه داوسني افغانستان مرکز دی هــم دانه پېرزو کېدله چه پر دی متجاوزین حکومت باندی وکړی او پښتانه پکښې خوار وی نوو ائې :

۱ـ د کابل مجله ۲۱۷، ۲۱۸ ګڼه.

د کابل مېوې خوراك دى د طوطيانو
ډېر خواره شول تور کارګان له هندوستانه

بل ځاى د کابل سره خپله پښتني مينه داسې څرګندوي ،

نور باغونه د نوروز په وخت غوړېږي    په اهله کا غوړېده د کابل باغ
ستا له باغه يو ګل ما لره دولت دى    نه په سل رنګ ګلونه د بل باغ

وګورئ چه خوشحال خان د کابل يو ګل د نورو د سلو ګلو سره نه برابروي همدا شان کابل چه د پښتنو مرکز دى د ډهلي تر ښار ښه ګڼي او د ډهلي ورانى تر کابل د مخه غواړي مثلاً وايي :-

چه لا ښهر د ډهلي شته نو خو شه له
څه فائده که وران په آسره کابل کړم

همدې مينې مجبور کړی ؤ چه کابل ته راشي او په ۱۰۸۰ هجري کال ئې په کابل کې خپل پښتني احساسات څرګند کړي دي چه وايي :-

پوره زر اتيا کلونه په کابل کښې
دا غزل مې په بياض بانلې تحرير کړ

خوشحال خان چه په پښتني خاوره د پرديو متجاوزينو مظالم ليدل نو بېي له دې ئې بله چاره نه ليدله چه يا بايد مقابله وکړي او يا غرونه وخيژي نو وايي :-

دا کشور له سر تر پايه کفرستان شو
يا مې ځاى کړاى غاړې غرونه يا غزا وي

خوشحال خان په پښتني خاوره کې د پښتنو دښمنان کتل چه د پښتنو بېخ کازي او بربادئ ته ئې ناست دي ، يا پردي وه چه د خپلو په جامه کې ئې

ځانونه ښکاره کوله او یا په خپله ځینې بدبخته پښتانه وه چه د ساد ګیړله کبله ددښمنانو په رشوتونو او منصبو نو غولیدلی وه نو خوشحال خان پښتنو ته داسی لار ښیي :-

رخنه ګر د ملك پرې مېږده په خپل ملك کښې
په حکمت په زر وزور په لښکرو نه

ورور او زوی د ملك په کار کښې قتل کېږی
نور په وا ړو بانـدې څوړ شوه محضرو نه

بلکه د خوشحال خان دوطن رخنه ګر د استونی مار ګڼی او دستونی مارخوډیر خطرناك وی :-

رخنه ګر د ملك په خونه کښې ماران دی
چه ماران دخونی شته خوبی ګډا مه

په دې ترتیب خوشحال خان د پښتنې خاوری سره مینه هر پښتون ته وصیت کوی او وایی :-

« د پښتنې خاوری سره علاقه ولری !! »

## (٤)

خوشحال خان وايي :-

# علم او هنر زده کړی!

چه ئې علم هنر نه وی ځینې ښته
بې هنر سړی که وګوري لاشې دی

د پښتنو بوه بدبختي په کورنه ده چه سړی ئې غم وخوري د پښتون ژوندون سرتو پا په بدبختی ده، هر څه نه چه ئې ګوري هغه د افسوس او اصلاح وړ دی په هره چاره کښې پښتون تر ورپښې دنيا وروسته پاته دی، که ځينو بې ننګی نه مخ کړي ده اتفاق ئې هم نشته، که اتفاق نه لري په علم او هنر هم لکه چه ښايي خبر نه دی چه دا بدبختي ئې د ټولو بد بختيو سر بلله کېږی، بلکه د پښتنو د ټولو بد بختيو سبب همدا بې علمي او ناپوهي ده، که ځينې ناپوه پښتانه پښتنې ننګه پر ېږدی او د نورو د ګټې د پاره استعماليږی يا که په خپل منځ کې سره خوری او اتفاق نه لري، يا که ئې ځانته فکر نشته او د ټولو پښتنو د اتفاق مفکوره نه تعقیبوی، يا که په یوه مرکز نه راغونډیږی او قبايلي تفرقې ئې منځ ته راوستلې دی، او يا که ئې ځمکې شاړې دی او ښه ښه ښاروونه ئې نشته، يا که په نس وږی او په تن لڅ دی او نور ...

د دې ټولو سبب دا دی چه علم او هنر نشته او په دې وينه دنيا کې چه څوك علم او هنر نه لري هغه پر ژوندیو نه حسابيږی او نه د ژوند په حق څوك ورته قائليږی، که قائل هم شی نو داسی تيت ژوند به کوی لکه ن چه ئې پښتانه لری، حقيقتاً تر بې علمه ژوند مرګ په زر درجې بهتر دی، خدای تعالی چه په قرآن کريم کې فرمايلی دی چه :-

«هل يستوی الذين يعلمون والذين لا يعلمون »

«آيا برابر دی هغه کسان چه علم لری او هغه کسان چه علم نه لری» دا نو د پاره او ی درس دی چه بايد د علم خواته توجه وکړی ځکه هغه انسان چه علم لری همیشه مخ په پورته ځي او د دنيا او اخرت ګټې حاصلوی

او هغه انسان چه ناپوه دی تل مخ په ښکته روان او د نورو د لاس محتاج وی :

خوشحال خان چه د پښتون دې لوی نقص ته ملتفت دی نو ور ته وائی :

علم نـا بیا یی په پورته ' جهل تا بیا یی په ښکته
یـا عیسی لره ور درومه ' یا قارون ته ځان وسپاره

بلکه خوشحال خان هغه څوك چه علم او فضل نه لری که څه هم د پاچا پر تخت
ناست وی یو ځناور او حیوان بولی او دا نسا نانو له دلې څخه ئې نه شمېری دی وائی :

چه ئې علم ' فضل نه وی چه په تخت د پاچا ښکېنی
یا یو ایېزدی ' یا لېوه دی ' یا ئې ګـاؤ خرشماره

راشی ' چه یو وار دې جهان ته په دقت و ګو رو څه دخدای عـالـم دی
چه په دې خاورینه مځکه کی سره ښوری ' راز راز ځناوران ' راز راز ښکنځې '
راز راز حیوانات او انسانان د مځکې په سر موجود دی ' ځینې غټ او ځینې
واړه مګر د ځمکې حاکمیت د چا په لاس ښکېږي دی ؟ دانسا نـانـو !!

دا ولی ؟ آیا انسانانو د مځ په زور او په خپل قوت دا حاکمیت حاصل کړی دی ؟

آیـا نر انسان نور غښتلی او غټ حیوانات نشته ؟

شته خو مګر بیاهم ولې انسان دا ټول مغلوب کـړی دی ؟

دا ځکه چه انسان پوهه او عقل لری ' د مځ زور نه دی عقلی او علمی قوت دی .

همدا راز په دانسا نانو په منځ کې وګورو ' ټـول ' انسانان دوه لاسونـه
دوې پښې ' دوې سترګې دوه غوږونه ' یوه خوله لری ' مګر دا څه سبب دی
چه ځینې انسـانان پر نورو حاکمیت کوی او بیا ځینې ملتونه نورو ملتونو ته
احتیاج دی او دهغو سلامی کوی ؟ دا هم ځکه مونږ په غور و ګورو غیر له علمی
نفوذ او قوت څخه بل هیڅ سبب او عامل نـه لری ' هرڅوك چه په عـلم ښکېږي
لوړ وی هغه په هرشی ښکېږي لوړ دی او هرقوم چه علم نه لری هغه تـل ټیټ او
ذلیل دی ' نن ورځ انسا نـانو د علم په زور هوا او دریا بونه مسخر او دځان

تابع کړی دی، دعلم اوهنر له بر کته په هوا االوزی او په دریابو لنه وزی غرونه سوری کوی او دسیندونو مخ بندوی . مگر دا یوازې دصورت او متر په زور نه دی شوی او نه کېږی، بلکه دعلم اوروحی قوت په زور دا حیرت را وستونکی کارو نه پای ته رسوی خوشحال خان هم وایی :

دسورت په زور قوت غرونه ماتېږی　　که خبر یې د کوه کن په زور قوت

چه د روح قوت پیداشی قمر شق کا　　په هر لوری ئې په مخ دروهی اصرت

خوشحال خان د هغه چا په حال افسوس کوی چه غوږ، خوله او ستر گی لری، مگر څه نه زده کوی، دی داسی سړی له ازله « سیه گلیم » بولی چه عاقبت به ئې ندامت په برخه شی :

که په خوله، په غوږ، په ستر گو څه زده نه کړي

تور ور د رو مه از لـی سیه گلـم بـي

پیر ، استاد ، مرشد بـه واړه در تـه شـا کا

که پـه جهل مر کب کښې مستقیم بـې

عـاقبـت بـه د ې پـه بر خـه نـدا مت شـی

چه داهسی دجـا هل سـره نـدیـم بـې

دلته خوشحال خان د پښتنو ناپوهی ته مخ را اړوی او گوری چه دامرض په پښتنو کښې ترهر قوم ډېر دی او نه یوازی خپلې ناپوهی ته نه ملتفت کېږی بلکه فخر پـه کوی نو خوشحال خان داسی پېغور ور کوی :

درست جهان په ناپو هـانو سره ډک دی

ولې زیات که په کښې و گورې افغان دی

ناپوهی خولا ناپوهی ده ، مگر د ځینو پښتنو تردې اند ازې د پوهی سر ه جو ړه نه ده چه خپل ځان پو هول هم نـه غواړی او نه ئې زده دی چه کوم هنر زده کړی ، دا څوڅو سببونه لری چه مهم ئې دا دی :

۱- ځینې پښتانه چه څه ځمکه یا څو پیسې پیدا کړي، نو دائې فکر نه ورځي چه په ژوندون او دنیا کښې معراج همدغه شي دی، دې ته رسېدلی یو، نور نو علم او هنر موږ څه په کار دی؟ او پر دې اندازې دخپل دې ناقص فکر تابع شي چه حتی خپل اولاد هم علم او هنر زده کولو ته نه پرېږدي ،

او دغوی را تلونکی ژوند ور خرابوي دا نا پوهان دې ته فکر نه کوي چه ژوند یوازې پیسې پیدا کول نه دي او بیا که د پیسو سره علم نه وي داسې پیسې څه به دردنه خوري، بله دا چه هر انسان په یوه جامعه یا ټولنه کښې اوسی هغه یوازې خانته مسئول نه دی بلکه د جامعې او ملت ته هم مسئولیت لري او باید همېشه ئې دخان د غم سره د ملت غم هم ورسره وي. نو خپل اولاد د دې د پاره چه پلار ئې پیسې لري د علم او هنر څخه را گرزول د جامعې او ملت سره خیانت دی، ځکه چه یوازې د پلار پیسې ملت ته دومره گټه نه رسوي لکه د اولاد تعلیم خصوصا چه پلار ئې نا پوه دولتمند وي، ځکه خوشحال خان وائي :

احمق که هر څو دنیا دولت لري　　　دولت به بای کا چه حماقت لري

که هر نادار وي شکر دې کاندي　　　که خوئې ښه وي علم حکمت لري

بل ځای دولتمند سړي د علم او هنر خوا ته داسې را بولي :

دولتمن دې په هنر په علم مټ کا

که هر څو ښایسته مخ وي بیا پسا له شي

او مړه همه بولي چه تر دنیا راووزر دمخه دخپل هنر په غم کښې وي :

مرد به غم دخپل هنر کا　　　نه د زر نه د دستار

که هر څو زر زرور وي، یا ډېر زر لري، چه هنر نه لري، خوشحال خان ورته په سړي توب قائل نه دی، که پلار وي که زوی ورته وائي :

هنر چه نه لري که دې پسر دی　　　سړی ئې مه بوله یو گاو خر دی

که هر څو زر زر لري که هر څو زر لري　　　تر دا همه واړه بهتر هنر دی

پښتانه پلرونه باید په څو پیسو یا څو جریبه ځمکه ونه غولیږی په خپله هم د علم په تحصیل پسې شی، او خپل اولاد هم له علمه محروم نه کړی. پیسې یا ځمکه خو څوک د علم په تحصیل نه ځنی اخلی مگر که علم زده کړی نو داسې انسانان به شی چه هم ځانته او هم خپل قوم او اولس ته به نافع وی :

۲ـ ځنی نا پوه پښتانه بیا په خپل نسب او لوړتیا غولیدلی دی وائی: ما ته هم دا بس دی چه د پلانی خاندان یم، یا پلانی زی یم، تر څو چه ژوندی یم خلق به په درنه سترگه را ته گوری او زما احترام به کوی نو نو علم ته څه حاجت دی؟ دوی ډیر غولیدلی دی او نه پوهیږی چه اوس موږ په داسې عصر او داسې پیړۍ کی ژوند کوو چه نور به نو یوازی د خاندان په نوم څوک تیر نشی او راتلونکی کلونه لا تر اوسه هم ډیر وبتر دی. دوی ځله خپل ځانونه د ملی ورونو له تولی څخه باسی؟ حال دا چه تردی وروسته یو سړی د هر څومره لوړ خاندان څخه چه وی که علم او هنر ونه لری په دوی پیسې به ئی څوک وانه خلی. خوشحال لا هغه وخت ویلی دی :ـ

که په اصل څوک سید یا شهزاده دی
چه هنر ور څخه نه وی مه ئې ستایه

نو ای د خاندان او نسب خاوندانو! راشئ اوس تردې خوشی او بابیزه خبرو تیر شو. او هغه اصلی او ضروری چاری تر سره کړو چه غریب وطن او بیچاره ملت ئې را څخه غواړی علم او هنر زده کړی چه د وطن او قوم په درد وخوری. ستاسې ترشا یا نه قوم د زئې، نسب یا خاندان په نامه لوړ مدلای نشی علم او هنر ته ضرورت دی چه دوی لوړ کړی.

۳ـ د پښتنو پخوانیو مشرانو هم نه دی غوښتی چه پښتانه پوه یا د علم خاوندان شی؟ ځکه چه د پښتنو ځینی مشران یا ظالمان خانکمان یا مستبد خانان او یا ځینی خیرات خواره سپین ږیری یان، او یا لنگی وهلی ملنگان وو. دوی هر یوه

دخپل نفوذ دقیام اوهمېشه توب دپاره قوم چال سازلی ؤ ، ځکه چه که قوم دپوهی اوعلم خاوند شوی وای نو هرڅوك ئې دځان مشر نه تا که او نه ئې مانه ، وائي چه فرعون له خپل مشاور څخه پوښتنه وکړه چه : « زه څه ډول خدایی څنګه وساتم ؟ » مشاور ئې ورته وویل : « خپل قوم په جهل او ناپوهی کښې وساته ځکه تر څو چه دوی ناپوه او جاهل وی ستا خدائی به منی ، خو که پوه شول نه به نه ئې له به ستا خدایی ! »

نو پخوا په پښتنو کی هم ځینی داسې مشران پیدا کېدل چه دخپل قوم سره ئې هم داوضعیت دراود ، ځکه خوشحال خان پښتانه دداسې کسانو جهالت ته ملتفت کوی او ورته وایی :

| | |
|---|---|
| ملا ئې په دهر تحصیل شی | شاعری ده له حکمته |
| ملکي خو باد شاهی ده | خانی هم له سلطنته |
| پیری لا لو په پایه ده | ده له دهره ریا ضته |
| صفت آسمان ګڼی داوره | پښتانه له جهالته |
| هر سړی ورته ملا وی | چه په یاد کا څو آیته |
| چه پیر ؤ هغه شاعر دی | قافیه غلطه کته |
| هغه سګ ورته ملك وی | چه کالی وه دی له محلته |
| خان هغه چه تر ... پروزی | په زانګه کښې زدی لته |
| پیر هغه چه پسې دروی | څو سر توری په دالته |

دخوشحال خان مقصد دادی چه پښتانه باید په پوره شتر ګو په هر چا پسې چه دوی تر لاس ونیسی روی نشی ، خپل ځانونه باید پوه او عالمان کړی او دعلم له رویه ښه او بد سره وپېژنی . هو ، خوشحال خان نادان او بې علمه سړی هم دځان دپاره بلا بولی او هم دجهان دپاره ، په خپله ، تر دانا ځار پېژی او نادانان تر ځان ځاروی وایی :

تر دا نا دی زه ځا ریږم     تـادا نان واړه تر ما

نا دا ن ځان لره بلا دی     هم جهان لـره بـلا

چه نادان و کـا' داورنه     هسی نه ڪا اژ دها

بې علمه سړی گـا ؤ خر دولی' نود گـاؤ خر به څه بر کت وی :

چه نه ئې دین وی نه ئې دولت وی     نه ئې په علم ښه خوي خصلت وی

سړی ئې مه بوله بو گاو خر دی     د گاؤ خر بـه څـه بر کت وی

خوشحال خان دعلم زده ڪړه په کوم وخت پوری نه تړ ا کې ' بلکه دده دا نظر به ده چه علم په هر وخت اوهرسن کښې چه وی باید زده کړه شی حتی دی په خپله وائی چه :

« که ڪوم ورڪی ماته څه راوښيي پرما به ئې د پرمنت وی »

نو گو یا خوشحال خان بې علمه پښتنو مشرانو ته توصیه کوی چه علم زده کړی ڪه څه هم له کشرانو څخه وی او وائی :

هغه استاد گڼه چه درته څه ښيي     کشر هم مشر وی چه درته ښه ښيي

په سپينه زېره به ئې منت ارم     که وړو کی راشی راته څه وښيي

دده په نظر کښې بې سواده سړی چه خط نه لری' ایکال او لوستل ئې زده نه وی دړ انده مثال لری :

چه خبر په هنر نه' هغه کـم عقل

چه د خط سترگې ئې نه وی هغه کور

خوشحال خان پښتانه وینی چه قدرت هر څه ور کړی دی مگر دوی کار نه څنې اخلی

دکرلو او آبادو لو ځمکې لرې خودوی له اوږې مرې نو وایي :

څه کم عقل ناداناندی      داړانده بې بصار نه
نعمتونه په خپل کور کښې      مري له لوږې له هیسته

خوشحال خان چه په خوا دپښتونخوا اغرونه وښې، چه له هر راز کانو څخه ډک دی او زر خېزې ځمکې ئې شاړې پرتې دی او بلخوا ګوري چه پښتون قوم وږی تږی، اوښ لغړ، خراب حال پروت دی او هیڅ هنر نه لري چه د خپلې ځمکې ودانې کړي او باله خپلو معدنو څخه کار واخلي نو زړه ئې درد کوي او پښتنو ته وایي :

کاڼی لعل د بدخشان، ګیاه کیمیا ده

چه ئې نه پېژنې ته، ګناه د چا ده ؟

بل ځای هنر د سرو زرو په شان ګڼې چه د دنیا په هیڅ ځای کې خپل قدر او قیمت نه بایلي او هنرمند سړی په هرځای قدر لري، وائي :

هنرمند سړی په هر دیار عزیز وی      په هرځای قدر قیمت لري سره زر

او د هرچا قدر په خپل هنر بولي :

د هرچا قدر قیمت په خپل هنر وی      د ګڼې قدر څرګند د ګڼې خوند کا

رښتیا هم که پښتنو علم او هنر دراودلای او س به د دوی قدر قیمت ټولې دنیا ته څرګند ؤ، او ټولې دنیا به ئې احترام کاوه. او س چه علم، او هنر نه لري د دنیا تر ټولو قومونو وروسته پاته او خوار قوم دی، او د دنیا علم لرونکو قومونو ته په دوه ستن هم محتاج دی. که پښتانه پوه وای دوی به هیڅکله غیر له پښتو له دبل چا مشر توب منلی نه وای، که پښتانه پوهېدلای دوی به هیڅ وخت

دبل چادپاره ځانونه وژلی نه وای لکه نن بړون چه ئې وژنی ، که دوی پوهه درلودای دوی به دپښتنی خاوری یوه لوښت هم دبل چا تر حکم لاندې پرینښې نه وای ، که پښتون قوم عالم وای نوخپل ملی مرکزیت به ئې پېژندلی او پریوه مرکز به راغونډ شوی ؤ ، او آزاد پښتونستان به ئې تشکیل کړی وای ، که پښتانه دپوهې خاوندان وای دوی به له خپل منځه نفاق ورك کړی ؤ ، او په یوه اتفاق به ئې دخپل ژوند دښه کولو غم خوړلی ، که دوی علم درلودای دوی به هرشیطان نه غولولی او به هرچا پسې به له تللای ، که په پښتنو کښې هنروای دوی به ولی دهرچا ورته دیوې ستنې دپاره ولاړ نه وای ، ځله به دو په نس وزی او په تن لوڅ وای ؟ ولې به ددوی ښهرونه دنوری دنیا د کلیوالو سره برابر وای ؟ ولې به سرتور سرپټلی پښتنې گرځیدای ؟ داټول له دې جهته دی چه پښتانه علم او هنر نه لری ، نوځکه خوشحال خان وایی :

« علم او هنر زده کړی‌ه ! »

خوشحال خان وایی :

# (۵)

# توریالی او مړنی اوسی !

| | |
|---|---|
| ګل ګلشن ده د تورې | که کابل دی که کشمیر |
| مړنی دی چه یادیږی | په سندر و یا په وير |

دپښتنو متل دی وایی : « زور چه زور ورشی عقل مړور شی ! » داخبره لهحکمته خالی نهده! زور او قوت دقدرت او طبیعت خوی اودنیادژوند مداردی که تاسی کائناتو ته وګوریء یادزړو او اوسنیو انسانانو په ژوند کښې ځیرشیء یاحتی ښاروبو اوحیوانانوته دقت وکړیء تاسي ته به ښه ښکاره شي چه زور اوقوت هرځای او هر کله چا کم دی هره اوبه کره چه دځان سره خو ندي کړي ساتی اوبه خپله چا ذبه ئې راګیرې کړی دی یاانسانانو چهبویه بل حکمرانی کړی اویائې کوی او یائې یودبل ښاروبه تالا کړی اویائې تالا کوی یاحیوانات چهیوبلخوری اویایو لهبله وېرېږی داټول هغهطبیعی حکم دی چه بهقوت اوزور کښې پروت دی اوترڅو کائنات او دنیا اوژوندوی دقوت مفهوم ور کېدلی نشی . کله کله (خصوصاً په دې عصر کښې ځینې انسانان ځانونه غولوی اووایی چه دقانون قوت ترهر قوت پورته دی مګر کهله دوی څخه پوښتنه وشی چه ستاسی دقانون نګهبان او ساتندوی څوک دی ؟ ضرور باید ووائی « نظامی قوت » نوبیا هم قانون په خپله قوی نهشو اودبل قوت پهزور قوی کېږی : خو دقوت او زور څخه هم غرض دانه دی چهانسان باید ددې دپاره قوی شی چه بل وخوری بلکه مقصد دادی چهانسان باید دومره قوی شی چهبلئې ونهخوری اودادژوند اساس دی .

قوت او زور بولازی په څو جسمو او غښتلو مټو کښې نه وی ، په وینو مغزو کښې لاډېر دی مثلاً کوم ملت چه ډېر پوهان لری ، ډېر کاریګر لری ، ډېر مخترعین لری ، تخنیکی قوت ئې ډېر دی نو دا ملت پر نورو ملتو په هر قوت کښې اوډ او پر مخ ځی په بل عبارت قوت او زور په دوه ډوله وېشلای شو ، یو معنوی قوت بل ظاهری او مادی قوت ، د معنوی قوت د پاره خو علم او هنر لازم دی چه دا خوشحال خو پاڼې د مخه تیا سې ته وویل ، او د ظاهری قوت د پاره وسله او صحت لازم دی چه خوشحال خان لا مېړانه هم په دې ردیف کښې راولی چه په دې فصل کښې همدا عنوانونه تر بحث لاندې نیسو :

توره : د پښتنو په اصطلاح توره یوازې د څنډوسپینې چړې ته نه وایی ، بلکه عموماً توره دوسلې په معنا راځی او اکثراً لا هم د مېړانې او شجاعت معنا ورکوی ، مثلاً کوم زلمی چه په جنګ کوی او په جګړه کښې پهلوان وی نو ورته وائی : « توره زن زلمی » دی او توره یالی هغه چاته وېل کېږی چه په جنګ کښې مېړه وی که څه هم دا جنګ په توره نه وی په ټوپک وی . نو دلته هر ځای چه خوشحال خان توره یاده کړې ، باید د تورې مجرد شکل مراد نشی بلکه په ډېرو ځایو کې له تورې نه مېړانه او جنګ غرض دی ، ځکه خوشحال خان پښتنو ته وایی چه « ځکه ژوند غواړی ، توریالی او سیء »

دا هم ځکه چه خوشحال خان د پښتنو سره نور هیڅ مادی او معنوی قوت نه وینی چه دوی ژوندی وساتی ، نه مخترعین او پوهان لری ، نه ئې اقتصادیات دومره لوېدی چه نوره دنیا دوی ته داهمیت او ژوندی قوم په سترګه وګوری نه ماشین خانې او کاریګر خلك ډېر لری چه له دې لاری ژوند وکړی ، نو بی له تورې بل هیڅ زور او قوت نشته ، چه د پښتنو ژوند او د پښتنو آزادی او پښتنواله خوندی کړی ، له دې جهته پښتنو ته وائی چه « توره تینګوی ، په همدې توره به خپل ژوند ساتیء بل فکر تاسی ته نه ښایی » .

پښتانه چه نور څه فکر کا ناپوه دي

بې د توري خلاصي نشته په بل کار

که کشمیر یو وخت د پښتنو پلاس کښې ؤ او یا کابل د پښتنو مرکز دی خوشحال خان ناقول د توري د کتاو کښته والي او هغه کسان په سندرو کې ستایل کېږي او یائي په مړ کړ وبر خالك کوي چه په توره مړ اسی ' لوړ ابی —

| | |
|---|---|
| کابل گټنه ده د توري | نه کابل دی که کشمیر |
| مړ نی دی چه یادېږي | په سندرو یا پسه و پسر |

خوشحال خان چه د پښتنو دژوند دپاره هم له توري بل قوت نه وینی ' او د پښتون دپاره تر هرڅه هم دا توري هنر د ډیر ضروري او ښه هنر گڼي چه وائي:

چه څو گنده سر بازي کاندی د تورو

زه خوشحال خټك تر سره هنر جار شم

دده په عقیده په دنیا کښې بوه تکیه د خدای ده او تر خدای را لاندی بیا د توری' نور څه که پښتانه کوی عبث دی که ئې د توري نقش کښېښو ست نول کارونه سرته رسېږي او د پښتنو خلاصو که سر نز مری تر زامې لاندی هم شی لا به د خپلی پښتنی هودی څخه راته وږی او خپله پښتنی ننگه به پرځای کړی:

یا تکیه دیوه خدای ده بیا د توري په جهان کې مو نشی کار تمامه

که دی نقش د توري کښېښی راته نوز کړه

کار وا به شي هاله چه هر ه کا مه

ښه خوانان به خیال هوه پري نږدي له لاسه

که ئې سر شي د خونی مزری تر زا مه

په جهان کي چه د ملك کړی مطلوقانونه ناغلی دی او خپلو اولسونو پر نورو اولسونو حکمراني کړي دي او هغو دا ملکونه ئې نولی او دخان کړی ئي دي' دا څه د خدای پر پار نه دی شوي بلکه جنگونه ئې کړي دي ' وینی ئي

بیولی دی ، قربانی ئې ورکړی دی ، او که پښتانه غواړی چه خپله پښتنۍ
خاوره د نورو له تجاوز څخه وساتی او یا د نورو لاسونه له خپلې پښتنۍ
خاورې څخه لنډ کړی او یا د خپلې پښتنۍ خاورې ځنې ټوټې بیرته د ځان کړی
او د پښتنو یوازی متحد ملت جوړ کړی ، نو باید توریالی او سی ، او د هر تجاوز
ځواب ته حاضر او هرې قربانۍ ته آماده وی ، ځکه چه ملکونه په غوټه نه ساتل
کیږی او نه خپل حق په مړه خوله څوك له چا اخیستلی شی ، خوشحال خان
همدا وائی :

چه ونه وهې په دواړو لاسو توره — چا ملکونه په میراث نه دی موندلی
چه تر سرو تر مال تېر نشی په عشق کښې — څوك د څونو په پالنګ نه دی ختلی

د مغلو په دوره کښې چه پښتانه ژوندی پاته شول او نوم ئې ورك نه شو هغه
د خوشحال خان د پښتنۍ تورې صدقه وه ،
دا لاځه که ځینې پښتانه بې ننګه شوی نه وای پنجاب به هم د دوی ؤ ، لکه
خوشحال خان چه یادونه کوی :

د اهمه دما د تورې صدقه ده — پښتانه چه په کښې خوری سیورغال
یو ګمان د ځوانان که زړ له ما سره وای — تور زمار په پنجاب باندې یرغال

خوشحال خان هغه څوك کامیاب ولی چه په توره قوی وی ، او هم توره زن
سړی په هر ځای کښې مخدوم او د عزت خاوند کڼلی ، ځکه چه د همدې توره زن
سړی په میړانه قوم ، او ملت ساتل کیږی نو وائی :

چه په توره ترك تازی کا — هغه هر کله کامګار دی
مورد ئې نشی باندې توره — چه میړو نه د کار زار دی
څوك چه شته تر شرقه غربه — د تور زور خاوند مقتدار دی

هغه پښتون چه توریالی نه وی پښتون نه بللی کیږی ، پښتون لاځه خوشحال خان
ئې مرد هم نه کڼی .

چه په ځان سړی تورزن ئی — بل کار نشته تر دا ښه

کمین وی په تورزنو — خو نامرد وی هم لا ښه

که نه دا وی نه هغه وی — هغه څه دی وچ واښه

چه داور لمبه پرې راشی — واښه سیځی بلا ښه

په پورته بیتو کې چه خوشحال خان نامرد سړی وچ واښه گڼلی دی، دقوت او ضعف یو ښه مثال دی، ځکه چه وائي، لکه وچ واښه چه داور د لمبې مخ ته تکیه کېدلای نشی همداشان هغه پښتون چه تورزن نه وی که چېرې دده په خاوره کوم خطر راشی نو دی هم هغه شان دوچ واښه غوندې له منځه ځی او که تول پښتانه په دې لار کې بې قرنه شی، نو ضرور د زمانې د حوادثو په مقابل کې ئې نوم ورکیږی او د هستی له کوره به د نیستی کور ته ولاړ شی ځکه نو خوشحال هر پښتون ته توصیه کوی چه باید په وسله مین وی، که نه وی نو دده او د بې ننگی ښځی فرق نشته وائی :

چه مین په وسله نه وی — مرد دې نه وائی خپل ځانته

لاس دې سره کا سترگی توری — ځان دې د جوړه وی ځوان ته

څنگه چه په ډېرو وختو د هر کې کار د پاره یو نمونه لازمه وی، چه د هغې نمونې له رویه کار پېل او تکمیل شی نو خوشحال خان هم د دې د پاره چه پښتنو ته د توریالیتوب یوه نمونه د ښیی، ځان تمثال جوړه وی چه پښتانه باید دده توریالیتوب د ځان سرمشق وگرزوی او درس ځنې واخلی او حقیقتاً هم هغه جنگونه چه خوشحال خان د پښتنو د ننگ د پاره د دښمنانو سره کړی دی د ستایلو وړ دی دی د تورو په میدان کې ځان داسی ستائي :

د تورو په میدان کې چه سوداوی د سرو نو

هغه زمان مې گوره تل په سوروی نه زما آس

بل ځای دخپلې خوښۍ او خوشحالۍ وخت داسې ښکاره کوي :

د خوشحال خټک خوښي په هغه وخت وي

چه بر پښنا د سپينو تورو وي د زغرو

بل وخت چه ئي په اورنګ زيب زده سوه کړې او له جنګه فاتح راګرځيدلی

دخپلې تورې نقش څنګه ښه ستائي :

تر اورنګ باد شاه مي رويست تا ودبند او د زندان

نقش مې کښيناوه د تورې په هند و په مسلمان

خوشحال خان دقوم دغليم سره داسې توري وهلې دي او دومره ئي دا رولی

دي چه په خوب کښې لا هم دده دتورې له ترنګ څخه ريږدي او له کټه لويږي.

لا په خوب کښي په اوار زه پر پروزي له کټه

چه دچا تر غوږ زما د تورې شرنګ دي

خوشحال خان دمينې او محبت په دنيا کښې هم له خپل تور ياليتوب او قوت

څخه تېرېدلی نشی او هلته هم غواړی چه پښتون مين له نورو مينانو امتياز

ور کړي او داسې نه دي چه "ترسيده ترسيده بوسه" غواړي بلکه په ښکاره ناري وهي:

زه خوشحال کمزوری نه يم چه بدوار کړم

په ښکاره ناري وهم چه خوله ئي را کړه

خپلې معشوقې ته په ډېر غرور خطاب کوي :

يا به سر دخپل ور ميږ پسه و پنو رنګه کړم

يا به ښکال کړم دغه ستا شو نډي ملوکې

ياد ښو زلميو زغ دي په ميدان ښکښې

ياد ښو دلبرو ځی په جهان کوکی

بل ځای دمعشوقې له خولې خپل تور يالي توب ښکاره کوي چه وايي :

مګر تا څخه سامان دسلطنت دي چه په هوډ مي سپينه خوله غواړي څوکه

د خوشحال خان عشق هم پښتني عشق دی یعنی ساده اوڅرګند ؛ کومه غلا او پټه نه لري، نه درقیب څخه پټیږي او نه ښېرا ورته کوي ، بلکه په ښکاره توره وراخلي اورقیب خپلې مقابلې ته رابولي ، نووایي :

په درست جهان به نوی یود ما غوندې رسوا یل
ورځم توره در کښلې چه مېن وار وم یـه تا یل

خوشحال خان ته دتورو دمیدان «های و هوی» دومره خوند ور کوي لکه د زوی دزېږیدو سندرې نوځکه وایي:

یاد ښـوزو یـو سنـدرې دی د زوو
یا دتورې په میدان کـې هوی وهای دی

دجنګ په هنرونو کښې خوشحال خان ډېر مهارت اوزښتې تجربې لري، مګر ترټولو هنرونو چه خوشحال خان خوښ کړی دی یو هنر دی، دی وایي :
کـه پـه جنګ کښې هم ، دایـو هنر چادرلـود هغه کـا میـاب اوفـاتـح کېږي ، هغه یو هنر کوم دی ؟ « ترسره تېر یدل »
نو وایي :

مزری توب بویه د تورو په میدان کښې
پـه خالي میدان هر یـو ګیدړ مزری دی
که دجنګ په کـار کښې ډېر دی حکمتونه
چه د سر سر فه ونه کـړی تور بری دی

خوشحال خان عقیده لري، چه دسړي ویره ترهغه وخته ده چه ترسر تېر شوی نه وی کوم وخت چه ترسر تېرشو توره ویره نو نشته، پښتنوته هم دا وصیت کوي :

مردی دې هیڅ ده که په زړه شېر نه ئې
څه خوو شه کـه زړور ډېـر نـه ئـې
تـرسر چه تېر شـې ویـره هیـڅ نـه وي
ویره دې هو تېره چـه تر سر تېر نه ئې

بل ځای وايي :

مستهتيان خوري مزري توري و ګنبلي

که د سر ويره دې نشي کار آسان دی

ننګيالي چه د اخلاص توره په لاس کا

د پر لښکر ئې ترهمت پورې کاروان دی

خوشحال خان وايي: سړی ته دا يوه څېڅه وينې بالا دی چه په غم کې ئې دی که نه دې نور څه نشته :

دا يوه څېڅه دلخان وينې بالا شوې

چه سړی سره ئې غم په هر زمان شي

خوشحال خان پښتنو ته وايي: چه هيڅکله ترهغو ارام مه کښېنئ ء څوچه دخپل غليم څخه انتقام وانه خلئ دی دانتقام سخت طرفداری دی، که هرڅه کېږی خو ودې شي، مګر پښتون بهٔ د پښتنوالی له دښمن څخه انتقام اخلی :

که تل تورې غشي خوری ماتې دجنګ وهی

مرد به سړی نه شي په زړه له انتقامه

انتقام خو به ضرور ديوې تعدی په عوض کښې وی او لويه تعدی دخوشحال خان په نظر کښې داده چه د پښتنو په حقوقو څوك تجاوز کړی، ددې تجاوز ځواب بايد ډېر شديد ور کړ شي ځکه چه پښتنوالۀ دهېڅ تجاوز منلای نشي، نو دا تجاوز که د پښتنو پر ځان وی يا پر پښتنی خاوره وی يا که د پښتنو پر آزادی وی، يا د پښتنو پر مال وی، ټول د پښتنوالۀ په نظر کښې يو دی او خوشحال خان دا د پښتنوالی حکم د پښتنو غوږ ته داسې رسوی :

که په توره ئې ځواب ور کړې مر دی دهٔ

که وجود دې څو کم آزار کاندی په چوب

مېړه پښتون که هر څو په ناز او نعمت کښې شي، بيا هم خپله پښتنواله نه هېروي او د عتبار زينو د انتقام غم به ورسره وي، د چا سره که نه وي هغه نو د خوشحال خان په مذهب ان نامرد ننګه خبر نه دی، وايي:

کډې کښېنوې په باغ کښې    هر د به و نه کا آرام
څو بوره به غليم نه کا    هره چار د انتقام
فراغت کا خبر نه دی    نا مردان په ننګ و نام

لکه څنګه چه تور يا ليتوب هر پښتون ته خوشحال خان لازم کڼي همداشان ئې پښتنو مشرانو ته ضرور بولي بلکه څوك چه دقوم سردار وي هغه بايد د پښتنې ننګې پر ځای کو او د پاره د خپل سر پروا هم ونکړي دی وايي:

سر دې نه غړوي خوشحال له    د بلا نه چه سردار دی

بل ځای وايي:

د سر دار د رياست ونه په وينو    په لړ شينو د اعدا کا ثمرونه
بې د تېغ له آبه نوري او به نشته    چه جنګجوي سرسبزه کا اترونه

هوا د زده توري هغه څوك بايد وهي چه د مشر توب يا تاج و تخت خاوندان وي د پيسو نوکران د خپل غرض د پاره توري وهي، خوشحال ځکه وايي:

هغه چه توري د بري په وخت وهي    هغه ئې وا ده د بل په بخت وهي
سپاهيان د طمع د خپل مقصود وي    د ننګ کښې توري څښتن د تخت وهي

يا دا چه:

سر داري لره بويه دادرې تو که
بو همت، دو همه توره، بل اخلاق

او خوشحال خان په دې ترتيب د هر پښتون د پاره تور يا ليتوب فرض ګڼي چه د پښتنوالي او پښتنې خاورې او پښتنو د ژوند او بقا د پاره هر کله قربانيه

او فدا کاری ته حاضر وی داسی لکه چه یا پنجابیان یا انگریزان یا نور دوی پر حق
تجاوز وکړی او پښتنی ملکه چه د دوی د پلار او نیکه په مینه نو په گزو گزو
راپورته شوی، ده د پښتنو دلاسه باسی او ځنی پښتانه د ځان نوکران کوی مگر دا نور
پښتانه نو هم داسی لاس تر زنی ورته ناست وی او ژړی ژړی ورته گوری او
یا خپله ملکه له نورو ورا گرزولی نشی مگر خپل تور یا لیتوب نو پر یوه بی وزلی
تربور ښکاره کوی — خوشحال خان وداسی بی ننگو ته څڼکه ښه وایی :

یا د مرد غوندی شمله د دستار پریږده
یا په سر کړه لکه ښځه میز رو اسه
نو که څوک پر بنه تریخی اری باید عبرت واخلی .

* * *

مړنی څوک دی ؟

مېړانی یا مړانی پخوا په پښتنو کښی ډیر لوړ مفهوم درلود
چانه چه به وویل شو ، « میړه سړی دی ! » نو دا سړی د هغو
ټولو خویونو خاوند بلل کیده کوم چه دیوه حقیقی پښتون سره لازم ؤ ،
او دی سړی نو په پښتنو کی یو خاص امتیاز او مقام لاره مگر له چا څخه به چه
د میړانی صفت ورك شو او ورته به ویل شو « میړه نه دی ! » نو د پښتنو لی ډیرو
اوصافو څخه به محروم بالله کېده خو خبره دلته وه چه دا « میړانه » کوم
داسی شی نه ؤ چه ل چا به سړی ته ترکاوه او یا به ئې له سړی څخه اخیست
بلکه دا پخپله د سړی کار ؤ چه دیوه میړه خویونه به ئې په ځان کې پیدا کړه
بیا به نو خلکو ورته میړه وایه ، او نه څوك یوازی په خبرو میړه کیدای شو
میړونو چه به څه ویل هغه ئې کړل خو وروسته ورو ورو چه صحیح پښتانه له
منځه ولاړل د میړانی هم نش نوم پاته شو . څو اوس خو ئې هغه نوم هم ډیر لږ اوریدل
کیږی ، خوشحال خان هم کتل چه له پښتنو څخه داهم صفت ورو ورو ځی
او نش نوم ئې اره پده ، نو پښتنو ته د میړه داسی معرفی کوی :

مرد به نشی په گفتار — خو پیدا نکړی کردار

چه دی وښکنځی مردانه ئی — که له تانه وی په ځار

چه څه دی خو انتقام دی — د مړ دانو کارو بار

عفو هور ته ځای لری ننه — چه نه عیب وی نه عار

چه غیرت ورڅخه نه وی — هغه مرد نه دی په کار

هم مهره لری هم زهر — ښه مردان وی لکه مار

چه هم تندر هم باران وی — تر هغو مړ دانو ځار

مرد به غم د خپل هنر کا — نه د زر نه د دینار

مرد به غم کا د خپل شرم — د عزت د اعتبار

نا مرد فخر په نسب کا — مړ د نه مور لری نه پلار

که سړی ځیر شی هغه دا پوره تعریف بس دی چه پښتنو ته ئې وه سړی وښئی او پښتنا نه ملتفت کړی چه اوس صحیح مړونه ډیر لږ دی، ځکه اوسنی مړونه خبری ډیری کوی، مگر عمل او کار ئې هیڅ نشته، د انتقام حس خو بیخی پکښی مړ شوی دی، که ئې څوك کور نالا کړی، ځمکې ئې واخلی، وینې ئې وڅکی، زوی ئې مړ کړی، نو مړی څوك نشته چه دی ظالم ته ورو ائې «ولی؟» نو په یو قوم کښې چه د «ولی» سړی نه وی له داسې قوم نه په توره مړې انه څوك غواړی؟

دخوشحال خان په اصطلاح د داسې چا چه نر او ښځې تول تینگې تینگې لری، خپله هره مړې انه حتی قومیت په پیسو خرڅوی، نه د شرم غم ورسره وی نه د عزت او اعتبار!؟ څوك په بیزو او شادو داسې لوبې نه کوی لکه پیسې چه ئې په دوی کړی زلمیان ئې د پیسو د پاره قربانی کیږی، سپین ږیری ئې د پیسو د پاره استعمالیږی، وطن ئې د پیسو د پاره پردی کیږی، دې چا ته به ځنگه مړه وو یلی شی؟

خوشحال خان هغو پښتنو ته چه میړانه پرازي په ښو ښو کالیو کښې لټوی داسې پېغور ور کوی :

که مردی دې په دستار ده په ملې وسه
سـکه مردی دی مبارك بر پښتـو نـه بوسه

مړلی هغه څوك بولی چه په غم کې مردانه وی او د سختۍ په ورځ لاس او پښې سره ورك نه کـړی او وار خطا نه شی :

مردان هغه دی چه همت ناك وی   په هره چار کې چست و چالاك وی
که غم پرې راشی پروا دغم نه کـا   خوا زه له هره چا په زیست وژواك وی

بل ځـای ځنـګه ښه وائیی :

واده زړونه فراغت وی پـه ښادیـه کښې
چه په غم کښې مردانـه شی زړه هغه

پښتون میړه باید هردم خیال نه وی او نه ئې خپله اراده دبل په ارادې پورې تړلې نه وی ؛ خلك به هر څه هر څه وائی خو پښتون میړه به خپله اراده او عزم ترسره کوی او دده زړه به دخلکو په خبرو لړو بر کېږی نه ، نو ځکه خوشحال خان چه صحیح او میړه پښتون دی خپل زړه د استقامت داسې مثال راوړی :ـ

دعا ام د بري خبري اور په اور تورې لښکرې
زړه مې نه خوځی له ځایه غر خو هسې وی کم نه؟

بل ځای د خپل زړه لوی والی داسې بیانوی :

د جهـان غمونـه واړه پـکښې ځـای شـول
شـکـر دا چه زړه ئې لوی را کـړو مـا هم

خوشحال خان وایي په سړیو کښې فرق دی ، ټول یو شان نه دی او نه ټول میړونه یو راز زړونه لری ، خو څوك چه رښتیا میړونه دی دهغو زړونه د پر کلك وي او د ژوند د هر ډول مشکلاتو تحمل کولای شی ، وایي :

له سره سم دي واده ميړونه — نه سره سم دي د هر چا زړونه
زړونه هم هغه ګڼه چه لکه غرشي — که باندي راشي هزار غمونه

ميړه هغه څوك دي چه د تنګځي او سختي په وخت ځان و نه بايلي هري سختي ته ځان ونيولای شي نو خوشحال خان وايي:

په جهان ګښي که مردان دي هم هغه دي
چه وسختي وته ونيسي ځانونه

ميړني پښتون بايد په ټولو مشکلاتو کښي زړوروي او په ټولو کارونو او اقداماتو کښي ټينګ عزم ولري، متردد او وسواسي نه وي چه يو کار شروع کړي او بيا په هغه کښي متردد شي او بيادهراس او وېري له کبله ئي پرېږدي داد ميړني خوی نه دی، نو ځکه خوشحال خان ويلي دي:

ګيدړ بي زړه دی وهم وسواس لري — مزری زړه وردی کله هراس لري
هغه مزري نه دی هغه ګيدړ نه دی — په کاروبار کښي چه زړه کوز پاس لري

دغم دزغملو دپاره خوشحال خان ډېري ښې لياري ښودلي دي خو په آخر کښي دخپل زړه زغم ئي هم ويلي دي:

غم په زړه کښي بد غليم دی — څو توانېږي خوار ره وه ئي
يا غمخوار چېرته پيدا کړه — ورنه کښېنه ښکاره وه ئي
يا تېره توره را واخله — څو چه وي همواره وه ئي
يا فرياد فرياد ناري کړه — ژاړه تاره په تاره وه ئي

ياخوشحال خان غوندي زړه راوړه
ځای ئي کړه انبار ره وه ئي

## ميړني به له خپله قوله نه اوړي:

ميړني پښتون بايد پر خپل قول ټينګ ولاړ وي او له چا سره چه عهد وکړي،

باید هغه عهد تر مرګه هم پال کړي، خوشحال خان ترهرڅه وړاندې دقول وړاندې سخته بولي چه وائي :

و نور څه او نه وران مه وایه خوشحاله
چه په قول، عهد وران شي وران هغه

بد قولي او بد عهدي دبې شرم نښه بولي :

یوه نخښه د ر نه وایم دبې شرم — په وعده په قول نه وي نرم ګرم

او داد مرد او نامرد ترمنځ لوبه ممیزه کښې ؛ ځکه چه نامرد په خپل قول بند نه وي، ان یو څه وائي سبا بل څه ، مګر مېړني داسې نه دي، مېړني څو ژوندي وي پر خپل قول به ولاړ وي ،

خوشحال خان وايي :

مرد به خپله وینا ژغوري څو ژوندي وي — د نامرد وینا نن شته، نشته سبا

بل ځای د مېړه کریکټر او شخصیت داسې بیانوي :

مرد هغه چه همت ئې پاك بر کت ئې پاك — دعا ئې سره خوږ په زیست وژواك

منځ ئې منځ، قول ئې قول، عهد ئې عهد — نه دروغ ، نه ئې فریب، نه ئې تیاك

لږ ویل، ډېر ئې کول په خاموشۍ کښې — دغنچې غوندې خوله ډکه سینه چاك

**د مړني لږ ویل ډېر کول وي :**

---

خوشحال خان د مړني یو بل صفت دا بولي چه ویل ئې لږ او کول ئې ډېر وي داسې نه چه «ډېروایی لږ خېژي» او س ا کثرو پښتنو ته دا دخو لې خبرې رسېږي په خوله هرڅه وایی او خورا غټې غټې مسئلې فیصله کوي او ډېرې لوی لوی نظرئې ور کوي ، مګر دعمل په میدان کښې صفر وي او دخپلو ویلو زرمه برخه عمل هم نه لري، نور خلك کار ډېر کوي خبرې لږې مو لږ خبرې ډېرې کوو کار لږ، نو خوشحال خان وایي :

مرد به نشي په گفتار        خوبيدا نه کړي کردار

خوشحال خان د کس او نا کس فرق هم په دې خبره کوی چه نا کس گفتار لری کردار نه :

و گفتار وته ئې مه غړوه ستر گې        په کرده په عمل گوره کس نا کس

بلځای د مړانې داسې صفت کوی :

مړنی په کرده د پروېل ئې لږ وی        دنامردو لږ عمل وی د پرئې لاف

مړنی به خپل پت ساتی :

---

خوشحال خان پښتنی پت ساتل د مړنی پښتون وظیفه بولی که څه هم په دې لاره کښې ئې سر او مال تول ولاړ شی :

سر دې درومی مال دې درومی پت دې نه ځی        د سړي د چارې کل خوبی په پت ده

مړنی به سخی وی : خو د سخا څخه د امقصد نه دی چه سړی با ید اسراف نه

ملا وتړی او خپله دنیا په چرسیانو یا بنگیانو یا قمار بازانو وخوری یائې په خوشې مېلمستیا گانو خرڅه کړی، داسخانه ده بلکه علاوه پر لودگی ړلو په گناه هم ده، سخا داده چه سړی د بې وزلو سرمرسته وکړی، د یو یتیم سر پټ کړی او د یوې کنډې نس موړ کړی او یو غریب ته لاس ورو غځوی، مگر د پر ځله د بې وزلو سره بې پیسو همرسته کېږی، لکه یو بې سواد ته چه لیکل او لوستل ورزده کړی، یو بد کاره له بدې لارې راو گرزوی یا نور ..

نو خوشحال خان مړه پښتون د هغه باز غونډې گڼی چه هم ئې په خپله خوری او هم ئې نورو ته ور کوی او نامرد سړی هغه مېږی او هغه مېږک بولی چه هر څه په غار کښې ساتی،

چه وهل، خوړل، خورول کا هغه بازدی پاشا هین دی

چه ئې سودې لره ودېښه یا مېږی دی یا فاره

په تېره بیا د ملی مشر یا سردار سره خو دا خوی لازم گڼی! ځکه چه دی په خپله هم ملی مشر ؤ، نو د خپل ځان په باب کښې داسې وایی :

چه‌ئې وشندی خوشحال په غرور غونو

لا به کله هغه گنج ور کوي بخته !

بل‌ځای دځوان سره داخوی داسې لازموی :

چه گټل، خوړول، بخښل کاځوان هغه

چه توره لری دتو رې خان هغه

خوشحال خان هغه‌سړی نامرد گڼی چه یوچا ته څه ور کړی او بیا هغه وریادوی‌او منت وربانديږدی‌او یاهر چاته دهغی‌ښېگڼې ذکر کوی' نووايی :

نامردهغه‌دی چه چاته څه‌ورکا  منت دپاسه وربانديږ زیږ کا

په‌راڅ کښې‌ومره‌هغه‌داروه‌خوره  چه‌په منت ئې وتا څوك ور کا

مړنی بـه رښتین وی :

مړنی سړی باید تـل رښتین وی اوهیڅ وخت در واغ ترخولې ونه باسی خصوصاً پښتون خوبایدهیڅ کله خوله په‌دروغوعادت نه کړی؛ خوشحال خان داخوی ترهر خوی دمېړه دپاره ضرور گڼی' بلکه هغه خوله چه دروغ وايی له سره خوله نه‌بولی وايی :

چه دروغ ترخولې وباسی کـله خوله ده

چه رښتیا تر خولې و باسی خـو لـه هـغه

دخوشحال خان په‌نظر کښې دروغ وبل دغولو خوراك دی اودروغ چن هم دسپی په شان یا دوی :

په رښتیا وېل غوډ پېژی دزده غو نـه  دروغ‌چن‌خوری لکه‌سپی‌دغولوسو نه

په‌رښتیا رښتیا خبرو که هم‌عالم‌دچا دښمن‌پېژی‌باید یومېړه پښتون تررښتیا خبرې تېرنشی دڅو پیسو‌یایو منصب دپاره باید حقیقت تر پښو لاندې نه کړی' په‌در واغو دچاصفت ونه وايی ' په چا کښې چه یوصفت نهوی دی ئې له ځانه پوری ونه تړی' چاپلوسی' غوړه ملی ' تملق د ذې تولـو اساس درواغ دی' نو پښتون باید په هر کـار کښې او دهرچا سره رښتین‌وی اورښتیا دوايـی '

پەدرواغو څرګېږي،ەغزلوی، خوشحال‌خان دپښتنوالی پوسنېولدی داسې وایي:

چەځوان‌وم دایم زودشوم پەرښتیا رښتیا خبرو
عالم دځان دښمن کړم کەداعیب‌دی هم‌دېوی

دروغ ویل اکثره لەطمع یاوېرې څخه پیدا کېږي، دروغ جن بە یاله چاڅخەوېرېږي چەئېدروغ وایی‌او،یا بە څەطمع‌لري، خوکەڅوك خوشحال خان غوندې‌مېړه پښتون‌وی هغەبه هېڅکلە نه لەچا څخه سترګه کوی اونه به ئې چاته سترګې وی، ځکه چه د پښتا نە پە ځټه کښې وېره اوطمع نشته، څوك کە ئې لری هغه اصیل پښتون بلل کېدای نشي، نوځکه خوشحال‌خان وایی:

دروغ ویل هغه کاچه ئې د وېرې وی یا طمع
خوشحال پەدااړنه دی حق بەوائی‌څوئی‌سرشته

ددروغجن شپه هېڅ کله‌له سبا کېږي، تل به ئې ژوند تیاره وی:

ورځ ئې مالیدلې‌نەده پە درست عمر     خدای‌بەله کاندی‌سبا ددروغجن‌شپه

خوشحال خان دراستي، اورشتیالار هغه‌لاربولی‌چه هېڅ ګمراهی پە کښې نشته، اوله رښتینو ته دجهان دبد خو اهي، څه خطره ویني، ځکه چه خدای درښتینو مل‌دی اوچاسره چه دخدای نصرت مل‌وی هغه پە هېڅ میدان کښې ترشانه راځي اوهروخت اوهرځای به سرخ رویه وی، دی وایی:

راستی لار ده باد شاهی     پکښې نشته ګمراهی
درښتینو پروا نشته     دجهان پە بد خواهی
درښتینو سره مل وی     تل نصرت دآلهی
درښتینو ځای جنت‌دی     دقرآن پەګواهی

دروغ ویل د کمذات خوی دی یاد کمزوری او دوزی سړی عادت ګرزی لمړی به دخپلې پستی،له سببه‌او دوهم بەد کمزوری، لەجهته اودریم بەدطمع پەغرض درواغ وایي. مګرڅوك چەصحیح پښتون وي هغەبەنەپستي کوی‌اونه

په کمزوري دده قوي روح کمزوری کولای شي او نه به هيڅ وخت چا ته طمع کوي ، لوځکه دروغ هم دصحيح پښتانه له خولې راوتی نه شي ، خوشحال خان وايي :

دروغ دچا دي ؟ د کمذات دوزي — يا د کمزوری په قوت لېږي
چه دائې نه وی دروغ به ولې کا — دروغ که کاندی خوزئې په سېزي

کهسړی هر څو مره ډېر دولت او ثروت ولری او يا ډېرې ځمکې او جايداد ئې وی خو چه دروغ وائي خوشحال خان هغه مختورن گڼي او دولت نشي کولای چه ددروغجن دمروا غو عيب پټ کړي ، ځکه وايي :

که مختورن دی خو دروغجن دی — رښتني کله په مخ خيرن دی
صفت ئې مه کړه دد روغجنو — که د گنجونو دولت ښتن دی

بلکه خوشحال خان رښتيا او يل سره زر بولي او لکه په سروزرو چه په هر بازار سودا کېږی او هر څوك ئې قدرلري او خريدارئې دی رښتيا ويل هم په هر ځای کې لوی مقام لری او رښتين سړی ته هر ځای داعتماد او اعتبار په ستر گه کتل کېږی او دده خبرې مني ، خوشحال خان داسره زرداسې ستائي :

غشی چه سم وی گذار پرې په کېږی — چه نه سم نه وی گذار پرې نه کېږی
رښتيا په هر څه کښې لکه سره زر دی — په لاس که زرلرې په زر هر څه کېږی

لو ځکه دپښتنوالی په قانون سړی هغه چا ته ويل کېږی چه د مړانې په نورو اوصافو علاوه رښتني هم وی او دروغ ئې تر خولې رانه وېزی ،
سړني به لوړ همت لری :

---

دپښتنوالي قانون هغه څوك دپښتانه او مړانې له نبمينه بـاسي کوم چه لوړ همت ونه لري ، لوړ همت دادی چه هيڅکله دژوند مشکلاتو ته ملا تيټه او نورو انسانانو ته داحتياج دپاره سرټيټ نه کړي که هر څو سختې او خوارۍ به باندې راشي خو همتناك پښتون به ځان نه بايلي ، خوشحال خان وايي :

چه تنگسه در بـاندې درشي کـه مړه ئې
په تنگسه کې د خوار په ځان ور مـه کړه

داسې چه دځوبېسو دپاره پرخپلو بد خوا هانو دښمنانو خپل ژوند خرڅ کړي، لکه ځینو بې ننګو او ناپوهو پښتنو چه پهوحت پرمغلو، بل وخت پــه انګریزانو او نورو خپله پښتنواله، خپله پښتني ځکه، خپل غښتلي زلمیان خرڅ کړي وه، یائې خرڅوي ... دې حالکو نهمونږ صحیح پښتانه نشو ویلی اونه ئې پښتنواله په خپله پا که لمنه کي پر پېږدي، ځکه چه مړني پښتون کــه له لوږې او خوارۍ مړهم شي پښتني همت ئې دا نه منې چه دېږدو نوکر شي او یا هغو ته خپله پښتني ځکه پرېږدي، او یا دهغو دغرض دپاره دخپلو زلمیانو وینې تویې کړي ...

ځــکه خوشحال خان دګېډې دپاره د پردي چامنت منل لوېــه بې همتي ګــڼي چه وائي :

کله منت اخلي دېــوې ګېډې دپاره
هرچه همتناك دی که په کورلری جوینه

دژوندون تولې بنادې،اوخوښې، په عالي همتپورې مربوطې بولي اوددنیا ټول نــکبتونه دبې همتۍ نتیجه ګــڼي چه وائي :

| | |
|---|---|
| دسړی هــو نبــره بنــا دی ده | چه په زړه کښې ئې همت شته |
| چــه هــمت د ســړ ی نــه وی | مــهیــا ور تــه نــکــبت شتــه |
| سر هــالــه پــه تــنه ښــه دی | کــه دســر ســره عــزت شتــه |
| دســړی چــه عــز ت نــه وی | د ژوندون ئې څه حــالت شتــه |

خوشحال خان دهمتناك سړي یوه خاصه ممیزه د ابولي چه دچامنت پرځان نه وړي او که دمنتسره هرڅومره قیمتي او ګرانبها ځیزهم ور کول کېږي، هیڅ ئې منلای نهشي، څنګه ښه وایـي :

| | |
|---|---|
| که ئې نه‌په‌منت مومې وائې مه‌خله | که دچا په‌باغ کې‌بوټی د کیمیاوی |

بلخای خپل لوړ همت دې دباره چه نورو پښتنو ته یو مثال او نمونه شی، خوشحال خټک ښه بیا وایی :

دمنت دارو که مرم په کار مې نه دی که علاج لره مې راشی مسیحا هم
دفر ښتو آمین منت دی په دعا کښې لاجرم ورځمنې ښه کړم دعا هم

د چا چه همت لوړ وی هغه تل خپل ابرښی دبل تر ډېر ښی په ښه سترګه ګوری، خپل وچه ډوډۍ ئې دبل تر سالنو نو خوښه وی او خپلې سپېرې میرې دبل تر باغو وربانډې ګرانې وی، خپله ژبه دبل تر ژبې ورته خوږه ا ښی خوشحال خان وایی :

دخپلې خونې تغن د خمچو نه چه غمیمه د بل په ګچو
نه اور دخپل نغری دلند و پچو نه اور دبل نغری د ډېرو و چو

همداد لوړ پښتنی همت اغېزه چه خوشحال خان خپله دشنو بو غر که داورنګ زیب له پاچاهۍ سره برابره بولی او قولو پښتنو ته دا توصیه کوی چه تاسې باید خپله آزادی که څه هم دشنو بو دغر کې سره وی په هغې پاچاهۍ چه دغلامۍ رنګ واری ورنه کړیء، خوشحال خان چه خپله دشنو بو غر که داورنګ زیب تر پاچاهۍ ښه ګڼی علت ئې همدادی چه د شنو بو دغر کې سره آزاد ژوندون شته، وایی :

چه سرې شنو بې چښم په وخت داوړی
پاد شاهی داورنګ زیب ده زما غر که

بلخای خپل یوزی ته داورنګ مقام او لقب ور کوی او داد پښتنو الی هغه عالی احساسات دی چه هیڅ پښتانه ته ددې خبرې اجازه نه ور کوی چه بل چاته سر ټیټ کړی او یا بل چاته دمادی شیانو او څو پیسو د پاره تسلیم شی ځکه خوشحال وایی :

چه خوشحال بانندې ناستی کا
دا پوزی نه دی او رنګ دی

همتناك پښتون باید وزې سترګې وته لری او ته ئې دبل چاپه ستر خوان
کښې سترګې وی او نه باید د کیتی طمع دپاره خپل حیثیت ټیټ کړی او یا
خپل شخصیت بایلی خوشحال خان دا نکته داسی ښیی :

که درست باغ د میوو ډك وما ته کښېږدی
تر همت پوری می څه دی پوو خسری

خوشحال خان دانسان قدر او منزلت، دانسان لوړ والی او ټیټ والی،
دانسان اصلوالی او کم اصلوالی یوازې دهغه په همت پورې مربوط ګڼی،
که څه هم دې طبقاتی امتیازاتو ته دومره قائل نه دی، خو بیاهم ترهغه اصیل
سړی چه همت نه لری هغه سړی چه همتناکوی بهتر بولی او په ئې ستایی وایی :

که همت او حمیت غیرت پکښې وی    تر خښتنه نه بهتر ګڼه غلام
په طلب کې که ستی نه وی باور کړه    دژوندون اوبه به بیا مومې په کام

بیا وایی :

چه همت د سړی څو قدرئې هومره    د تمیز په تله هر سړی تاله شی

خوشحال خان د تولو کسانیا بو سړی په همت کښې پټ ګڼی، او څکه وایی :

دهمت په پال وپر سړی الوزی    مرغه پورته الوته کا په وزرو

د همتناك سړی نظر د هغه د همت په شان لوړوی، ودو ودو څېزو نو ته
نه ګوری او نه واړه واړه څېزونه ئې له خپله مهم غرض او مطلب څخه
ګرزولای شی، په دې میدان کې خوشحال خان خپل ځان نورو پښتنو ته
نمونه کوی، وایی :

لکه باز په لوی لوی ښکار زما نظر دی    نه چه ګرزی ګونګټ نیسی باد خورك یم
چه په غوښوئې رنز ګار هغه زمری یم    نه چه ولی، وابنه خوری هغه مږك یم

دخوشحال خان په‌عقیده هغه‌څوك چه همت لری هغه هېڅکله دبل د لاس کتې ته نه گوری، دخپلې متې په‌زور ژوند کوی دبل لاس ته کتل سپکتیا نه بولی، نو وائی :

خسا چو ته مردار هیو نه ... سپی گیدړ شرمښ کفتار خوری
دمزري پو هنر دا دی ... چه یا صبر یا خپل ښکار خوری

څوك چه همت لری هغه‌نه یوازې دبل دلاس کتې ته نه گوری بلکه که‌ئې دلاسه وشی دخپل توان سره‌سم دنورو سره کومك او معاونت کوی دامطلب خوشحال داسې ادا کوی :

چه‌خپل بار په هیچا نېږدی بار دبل وړی ... هم هغه سړی لایق دی دنیا

په آخر کښې خوشحال خان خپل ټول نظریات چه دلوړ همت دستایلو دپاره ئې لری په‌دې یوه بیت کښې ئې خلاصه کوی او پښتنو ته توصیه کوی چه په هرقیمت چه‌وی، باید همت پرېنږدی نو وائی :-

که‌آسمان دې دمزری په‌خوله کښې ور کا
دمزری په‌خوله کې مه پر پږ ده همت

داد خوشحال خان هغه وصیتونه وه‌چه پښتنو ته ئې دلوړ همت په‌باب کښې کړی‌دی او هغه هم‌دې دپاره چه‌لوړ همت ئې دمړانې مهم رکن بللی دی او مړانه دپښتنوالی ټېنګ اساس دی، او خوشحال خان خومړنی او همتناك پښتون غواړی، دالاځه چه دنامرد سړی ملګری ئې هم‌خوښه نه ده که‌څه‌هم دمکې په‌سفر کښې وی :

دنامرد سره مکې ته رسید ای،
ښه دمرد سره په‌بیدی بید یا ورك

بلکه خوشحال خان تر مرګ وروسته نه غواړی چه‌حتی قبرئې د نامرد دقبر سره ایرخ په‌ایرخ وی او که دمرد پښو ته پروت وی،هم خوشحال دی :

پس له مرګه به ښخ د مرد تر قدم شه یم
ګوره چې مه شه د نامرد له ګوره سم

غښتلوالی په څه دی ؟ خوشحال خان وایي :

یا ګښتي د زور د دو سره مسکین ه
یا ددوی غوندې پیدا کړه سر وندونه

یو معنوی غښتلوالی دی او بل ظاهری ، معنوی غښتلوالی خو په علم او هنر اړه لري چه په دې باب کښې خوشحال خان د مخه د پښتنو سره وزغیده او د علم او هنر ضرورت ئې پښتنو ته ثابت او څرګند کړ ، پاته ظاهری قوت شو چه هغه په توره مربوط دی مګر که لږ دقیق شو نو دا به راته ثابته شي چه دا دواړه غښتلوالی له روغتیا څخه زیږي او په روغتیا ساتلی کیږي ، که څوک ناروغه وي هغه هیڅ کله د روغ سړي په شان ښه فکر نه شي کولای ، ځکه چه ښه فکر په روغ او سالم دماغ کښې پیدا کیږي او څوک چه سالم دماغ نه لري هغه هیڅ وخت په علم او هنر کښې کامیابېدای نشي او نه د معنوی قوت خاوند کیدلی شي همدا شان د تورې په میدان کې روغ او تندرست زلمی تر ناجوړ او ناروغه اتیې سپکه زلمی ښه توره وهي ؛ روغتیا نه یوازې د تورې په میدان کښې په کار ده بلکه د اجتماعي ژوندون د حرکت ستنه او اساس په همدې نکته ولاړه ده ، نو ژوی او انسانان تر څو چه روغ صحت منداو تندرست دی نو د کامل ژوندی اطلاق پرې کیدای شي ، ناروغه انسان علاوه پر دې چه ژوندی دی او د ناروغو انسانانو کاروان ته نیمګړی وی ، ناروغه انسان علاوه پر دې چه د ټولنې او جامعې پر او ژوو بار غړی دی او د خپل قوم او ملت په درد (لکه چه ښائي) نه خوري . په خپله هم د خپل ژوند څخه حظ او خوند اخیستی نه شي ، نو ځکه ژوند په ضرر دی ، نو ددې خبرو له کبله خوشحال خان پښتانه دې مهم اصل ته متلفت کړي او ورته وایي :

هغه څه دی روغ صورت دی　　　　چه بهتر تر سلطنت دی
ددنیا دولت که ښه دی　　　　ددولت نه ښه عزت دی

ځکه چه پښتانه ډیر لبر دي خوا ته ملتفت دي د خپل صحت سره ډیره بی پروائي کوی ، خصوصا د خپلو ماشومانو او کوچنیانو د روغتیا سره ئینگه علاقه هم نه کوی . زه دا نه وایم چه اولادونه تندرست نه وی ، مگر دا به ښکاره وبلی شم چه پښتانه هغه ضروریات چه د روغتیا د ساتلو دپاره لازم دی نه راغونډوی او نه د هغو شیانو څخه چه د روغتیا نه مضر دی ځانونه ژغوری . مثال یې دا دی چه د پوله هغو شیانو څخه چه د روغتیا د ساتنی دپاره لازم او ډیر ضروری دی نظافت او پاکوالی دی چه د انظافت نه یوازې د لاسو پښو ومخ یانور بدن مینځل او پاك ساتل دی بلکه د کور پاکوالی ، د کالیو پاکوالی ، د لوښو پاکوالی او هر څه چه د انسان ژوندون سره علاقه لری باید پاك او ستره وی او د پاکوالی خیال ئې و ساتل شی خوشحال خان په څه خوږو الفاظو د امطلب د پښتنو غوږو ته رسوی چه وایی :

خونه چه پاکه وی پری ږدی کټ اوری

وربانسي هر کله عزت دولت اوری

پاکی چه نه وی په هغه خونه کښی　　　وربندی وایه بلا آفت اوری

مگر له بده مرغه ځینی پښتانه ویښتو چه سره پروت دی چه د کور ، کالیو او لوښو پاکی او نظافت ته ملتفت نه دی او توجه نه کوی پښې او لاس د سر او ږیری ویښتان ئې هم خیرن او ناپاك وی چه په خپله بد مملو میږی او د نورو د کرکې باعث کیږی

استغفر الله . زه دا نه غواړم چه خپل قوم یا د قوم ځینی افراد تحقیر کړم او یا ئې په سپکه یاد کړم ، ځکه چه زه په خپله پښتون یم او په پښتنو الله افتخار کوم مگر دلته زه غواړم د خوشحال خان د افکار و ترجمانی و کړم چه هغه

روغتیا او صحت ته په څه درنه سترګه کتل او د پښتنو د پاره ئې تر څه اندازې ضروری څیز باله او پښتانه ئې ددې لوی نعمت ساتلو ته پەدې راز متوجه کول چه ورته ویل به ئې :

چه بهتر تر هر نعمت دی — که نعمت دی روغ صورت دی
چه ئې دا نعمت روزی دی — سر تر پایه عنایت دی
که ئې پېژنې ته قدر — روغ صورت لوی غنیمت دی
ستا د ګوښي ځان یو ازنی — تر جهانه زیات قیمت دی
که دی ځان نه وی جهان وی — په عدم ئې اشارت دی
دا جهان لکه معنی شو — ستا وجود ئې عبارت دی
چه په ځای ئې عبارت وی — د معنو هسو نیره قوت دی
د صورت د خوشحالیه — مدار واړه په صحت دی
چه صحت د صورت نه وی — ورته خس مال و دولت دی

خوشحال خان د انسان په هستئ کښې د صحت خوند او حلاوت ته ډېر قائل دی دده په نظر کې که صحت نه وی، نور هرڅه چه وی ټول هیڅ دی، نو ځکه پښتنو ته دا خبره په شعری ژبه بیانوی، ورته وایی : ـ

که ډېر دولت لرې ډېری هستئ — دواړه دی هیڅ دی بې تندرستئ
که یې بوهیږې خو تندرستی ده — چه حلاوت لری ستا د هستئ

نو په دې ترتیب خوشحال خان پښتنو ته د توریالیتوب او مړانې او غښتلوالی توصیه یای ته رسوی چه پەدې زمینه کښې دده د مفکورې خلاصه هم دا جمله ده چه:

«پښتنو! توریالي، مړنی او غښتلی اوسی!!»

په هرڅه کول هغه کېدل او چه دوی په هرڅه ویل هغه به قبلېدل، په دې کښې شك نشته چه دې قوتونو ترڅه مودې پورې دقوم دپاره خورا اوچت اوډېر خدمتونه وکړه خصوصاً روحانی او مذهبی قوتونو، ځکه چه له دې څخه هېڅ پښتون انکار نشی کولای کوم خدمتونه چه ملایانو داسلام دپاره یا داسلام په لاره کښې کړی هغه دهېرولو نه دی همداشان هغه لارښوونې چه د دین شیدا یانو خپل بیخبر قوم ته کړی دی او دوی ئې سمې لارې ته چه د دنیا او آخرت ګټې په کښې وې رابللی دی ده پېرو ستاینې وړ دی خصوصاً په پښتنو کښې دجهاد روح دروشن فکرو عالمانو دوعظونو او لارښوونو برکت دی او په پښتنو کښې اکثر لوی اومشهور مجاهدین هم دعلماؤ او روحانیونو له طبقې څخه پیدا شوی دی، مګر دافسوس خبره داده چه وروورو ځینې داسې کسان پیدا شول چه ځانونه ئې دې مبارکو طبقونه منسوبه ول، مګر خوی ئې هېڅ دوی ته نه پاته کېده اونه حقیقی علما اوروحانیون وو. فقط دوی د صحیحو علماؤ او روحانیونو پاك نومونه اوسپېڅلی مسلکونه ور لکه داره کړل او داپاك مسلکونه چه خدای دانسانانو داخروی اودنیوی سعادت دپاره پیدا کړی وه پوازې دنس ډکولو اوپیسو پیدا کولو اوخالص مادیت دپاره وسیله کړه او حقیقی لاره ځنې پاته شوه. خوداسې متقلبینو دخوشحال خان په وختو کښې ډېر قوت مندلی ؤ، اوعلاوه پردې چه حقیقت ئې پرېښی و، اوخپل پاك مذهب او خپله سپېڅلې طبقه ئې بدناموله خپل قوم ته ئې هم سمه لارنه ښودله او پوازې ئې هغه لارې ورښودلې چه دوی ترې نه استفاده کوله. نوځکه خوشحال خان دا مظاهره کوونکی ترخپل قضاوت لاندې نیسی اودقلم په څوك ددوی ترټنه او اوغندنه کوی چه موږ دلته دخوشحال خان نظریه اوعقیده ددوی دوخت ددې څلورو قوتونو په شاو خوا کښې جلاجلا راوړو چه خوشحال خان په څه طریقه داد حقیقی ملایانو او رشتینو شېخانو بدنامو ونکی پښتنو ته معرفی کوی:

## څنګه ملا؟

خوشحال خان هغه کسان چه حقیقي ملایان نه وي او په دروغو ځو ییسو دپاره ځانونه عالمان ښکاره کوي او په دې راز د خدای مخلوق له لارې باسي ، په ظاهره ځان خورا متقي او ښه سړی څرګندوي ، مګر په پټه ئې خلقو ته دام ایښی وی څنګه ښه په ښېښتنو پېژني چه وایي :

| | |
|---|---|
| نادیده چه منیه (۱) اولي | ځان ملا کاندی مشهور |
| سفله تول کاڅو در همه | تر خواجګانو شي مغرور |
| دروغجن تړلو په ور شي | د کابل کاندي مذکور |
| پټې د کی پېا لي ا خلی | ښکاره نه خوری پړانګور |

داسي د علم او علماؤ دښمنان خوشحال خان دغلو په نامه یادوي. رښتیا هم داسي ناقص کسان د حقیقي ملایانو او علماؤ ، نوموره غلا کوي مګر علم او پوهه لري دي وایي :

هسې غله را ګډ شول په دا دور آخرین کې
چه پیل له انبالیه پټوي په خپل آستین کې
زردانې تسبیح لري شملې د وروسته پر پېزدي
لوی کتاب په لاس کښې بل سیال نه ګڼي په دین کې

بل ځای وایي .

عالمان دي رهزنان چه غرا دی نهادی     عام عالم اره زده کړي خوډلیله

همدا شان هغه څوك چه د علم دعوه کوي ، مګر عمل ئې له ویلو سره برابر نه وي په ښه ستر ګه نه ګوري بلکه د داسي چا په حق کښې وایي :

| | |
|---|---|
| کتابونه د آسمان د ځمکې اولی | په عمل ئې فرق د ځمکې د آسمان دی |
| په باطن ئې زړه ګمان سره لړ لی | په ظاهر و بل په ژبه مسلمان دی |
| په خبرو کښې ئې فیض مواندهٔ نشي | مذ بذب په قول ، عهد په پیمان دی |

(۱) منیه د فقه یو کتاب دی ،

په تېره بیا هغه اشخاص ډېر بدبختانۍ چه د نس د پاره قرآن تر پښو لاندې کوي
باعمل نه پرې کوي، نو وايي :

په کاته شم و عالمو ته حیران — چه د نس د پاره څه کا دا ټګان
تل قرآن د وړاندې ایښی قرآن اولی — ولې هېڅ عمل ئې نه وي په قرآن
هسې چارې ئې پیدا شي له وجوده — چه په فکر ذکر نه وي د شیطان
په کوم لوري پسې ځم چېرته ئې غواړم — د کیمیا غوندې نایاب شول دانایان

هغه څوك چه ځان ملا بولي او د ملايۍ دعوه کوي باید هېڅکله حق پټ نه کړي
ځکه چه حقیقي عالمان په ډېرو مهلکو ځایو کښې چه د مرګ خطره وه هم
تر حقیقت او حق وېلو تېر شوي نه دي څه دا چه د څو پیسو د پاره به ئې حقیقت نه
شا کړې وای ؟! خوشحال خان حق پټوونکو ملایانو ته وايي :

په ملا تورې تیاره شوه چه حق پوښ شو — که په لاس ئې فتاوي وي سراجي
علم څه دی چه معنی کښې ګبینه دی — کاسه هم ور لره بویه خراجي

بل ځای هغه ملایانو ته چه حق ریونکي نه وي داسې ښېرې کوي :

د تحصیل او د ترتیل بلا په ده شه — چه ملا د حق ګویۍ په کار ساکت دی

هغه څوك چه د علم دعوه لري، ګر د خولې او زړه لاره ئې سره یوه نه وي که
هر څو ډېر لمونځونه کوي لا هم د خوشحال په نزد بې اودسه دی او کوم عالم چه د
زړه او خولې ګفتار او کردار ئې سره یو نه وي د هغه په باب کې داسې وايي:

که لږ لنډ غوندې ملا واقف د راز دی — د کتاب په مسئلو زبان دراز دی
زه مربی د هغه چا یم تری ځار بېزم — چه د زړه سره ئې جوړ د خولې آواز وي
چه ئې رښا د خولې له زړه سره یو نه وي — که په هر لمانځه او دس کا بې نماز دی

هغو ناقصانو ته چه حقیقي علماء نه وي خود علماء، په جامه کې ئې ځانونه
خرګند کړي وي، د هېچا په مال صرفه نه کوي، حتی د کونډو رنډو او یتیم مال
هم لا نه پرېږدي، خوشحال خان د دوزخ او اور خوړونکي خطاب ور کوي :

خپل مال په ترس په سرفه په بیم خوري — دبل غم نه کړي که درست که نیم خوري
په کور د کوندې رنډې دینیم خوري — ملا د اولـې اورد جهنم خـوري

په پای کښې نولس دغندني او تر ټولو څخه اخلي ملانه توصیه کوي چه مغرور کیږه مه :

که ډېر والاشي په یار سایه کښې — سیال دې څوك نه وي په ملایه کښې
غافل هیڅ مه شه د نفس لـه مکره — بلا پر بوزي پـه اشنـا یـي کښې

دا د حقیقي ملایانو او علماؤ غندني نه دي ، بلـکه خوشحال خان پښتنو ته هغه کسان ښیي چـه ملایان نه وي ، خو د ملایانو په جامه کښې را وتلي وي. او د حقیقي ملایانو رنګه بدوي ، نو ځکه پښتانه بایـد د خوشحال خان خبرو تـه دقیق شي د حقیقي ملا او غیر حقیقي ملا فرق سره و کړي او هغه څوك عالم و پیژني چه په حقیقت سره عالم وي ، نه دا چه د ملانوم پر ځان کښېږدي خو په حقیقت کښې بـلا وي !!

* * *

## څنګه شیخ ؟

دخوشحال خان په زمانه کښې تر ملایانو لا په شیخانـو او پیرانـو کـې ډېر داسې کسان وه چه فقرئې شرمولی ؤ ، او دپیسو ټولولو او خلـکو غولولو د پاره ئې دا آسانه لار موندلې وه ځکه چه هغه کسان چه علم به ئې نه درلود او دعلماؤ نوموته به ئې پر ځانو ایښوول او خلق به ئې غولول که څه هم په بدوالی کښې ئې له دې ناقصو پیرانو او شیخانو سره ډېر فرق نه درلود ، مګر دا هم ثابته خبره ده چه دهغو کـار دخلـکو دغولولو د پاره ډېر سخت او مشکل ؤ ، او هیڅ امـکان ئې نه درلود چه هر جاهل او ناپوه دې کـار ته غاړه ایښې وای ، دا ځکه چه ځینې داسې څختونه به راتله چه د دوی عیبونه به په خپله څر ګندېدل او یا به ځنې داسې ځایونه راغله چه هغوی به امتحان ور کولو ته مجبورېدل

تش په زړه پرېښودلو او تسبېح اړولو هغه کار نه پاېه نه چلېده خو د متقلبو او غلو او رنګو شېخانو کار تر لو مړي دلې ډېر اسان او بې اشکاله ؤ ، فقط پو چلتار نه لاوېږ او زد کسیس اغو ستل او ستر ګې چپه چپه کول د پښتنو د غولولو د پاره کافي وه ، نو ځکه خوشحال خان مجبور شوی دی ، چه

داوله هم خپل قوم ته معرفي کړي چه دا سې متقلبين و نشی کولای پښتانه وغولوي او باد حقيقي شېخانو او د خدای د دوستانو نوم ورېد کړي ، هو ! خوشحال خان حقيقي شېخان هم پېژني تاسې ګوري چه څنګه ښه ئې ستايي :

د درويش نر زړه په نـه رسی داوا ړه      آينـه د سکـندر کـه جام د جـم

د درويش وته سر کوزي بادشاهان دي      د آسمان ورمېږ لاهم دی ور ته خـم

د درويش علم په درس په مکتب نه دی      تل نظر اری پـه لوح او پـه قلـم

ماو نا ؤ ته د يوال شته غالي غرو نه      په درويش تر شرقه غربه د ی يـو سم

بل ځای د درويش خوېونه او افعال داسې بيانوي :

درويش هغه دی چه ترس د خدای لري      د نيـکو فـعل د نيـکو رای لـري

طمع له چا ، نه کا لقمه حلاله لري      جدا له خلقه دا سو د ګېر ځای لري

خو بالعکس هغه کسان چه د شېخۍ دعوې کوي مګر خوی او کارونه ئې د حقيقي شېخانو نه وي ډېر بد ستايي او په دې تر تيب ئې پېژنو ته ښيي :

را ښکاره دی د دې دور لنډ لستوني      پر دی مال وته او زده لاسونه مو نی

که په باغ ئې د يتيم د کونډې ګډ کړي      دا نګورو به خوازه زنګوری چونی

د خو ډ و مزه يو ښتی بـزه ئې هېڅ      ښې ځربی لنډی فهی وربا ندې سونی

کله سر په سينه و منډی سبز ګی شی      کـله سر موزی د مار لـکه سر بونی

په خپل کار لکه شاخوزی خر خوله خوشکه      په بل کور کی لکه آس په راتب پونی

هغه کسان چه په ظاهر لباس ځانونه شېخان او پيران بولي او همدا لباس

ئې. دخدای د مخلوق دغولولو دپاره سبب کړی وی خوشحال خان ئې ښه پېژنی او داسې ئې غندی :

که شېخی زاهدی غوالړې  په خپل لاس کښې ده لا لا !
لنګی ور دستار په سر کړه  سر و هم په مصلا
بامسواك کښېږه ده په سر کې  پا ئې وتو مېده تر ملا
په تسبيح خو څوه شو نه دې  نور تنګی کوي که غلا

ددې راز شېخانو غولولو او فريب ته هم خوشحال خان ښه ملتفت دی او ددوی په حماقت خندا ورځی چه دخو ېسو دپاره شنډې ښځې ته په دروغو وايی چه زه به زوی در کړم، يارنځور ته په اذر صحت ور کوی باسو چه مسلمان دشخصی غرض دپاره په لېز کړی کافر ولای شی خو خپل ځان ته ئې فکر نشته چه کفرته نږدې ګاروته کوی، خوشحال خان داسې خلك دطريقت غله بولی او له خدايه ئې مرګ غواړی، ځکه چه داسې خلق هم طريقت بدناموی او هم دخدای مخلوق له لاری باسی، نو خوشحال خان وايی :

داچه ګرزی، کښېنی، پاڅی پاېځې لندی  شانګی و هی دربانې څربې لندی
دا همه وايه رهزن د طريقت دی  خپلې خونې لره ودی پرديه کندی
د عالم رخنې تره په سبادی مره  خبر نه دی دا کېدی له خپلې اندی
ورنځور ته ور کوه صحت په اذر  ښکلې زوی په دروغ ور کړه دشنډی
چه بېې خدايه يقين په نور څه کېدی  دهغو دايمان بوودې شيطان وندی
عالم کفرته و باسه په زمان کښې  دی تر خپل ايمان و تلی لا په څندی
لا به کله داسکان وژنې خوشحاله  چه به دا ثواب حاصل کړې پندی پندی

ددې ډلې ددروغو پهٔ ذکر خوشحال‌خان افسوس کوي‌چه دوي‌ولې دخدای نوم په منا فقت یادوي اودخدای نوم ئې دڅوپیسو دپاره وسیله کړی دی .
نو ځکه له خدایه دداسې ډلې څخه امان غواړی :

خدایه مه وی هسې ذکر　　چه ئې خلق سر هوا کا
درو یشان د «لا» په توره　　همیش لود ما سوا کا
د یود «لا» توره وکښلې　　یوو دغېلو یا د غوا کا

بل ځای هم ددوی له دا په غفلت اړلی ذکر څخه امان غواړی چه ذکر دځان د پاره کوی خومنت په نور عالم ژدی وایی :

خدایه واخلې هسې ذکر　　آلو ده په بېر غفلت
خدای د ځان دپاره بولی　　په عالم کاندی منت
په الله الله و بلو　　تاخت تاراج کا درست محلت

بل وخت چه دوی وینی په زړه ئې بوه په خوله ئې بله ده' ویل او کول ئې سره برابر نه دی' تسپې پهلاس دبل مالونه خوری' نو وایی :

کههزار ځله څوك سر وهي په مځکه　　یا په صوم ترشمځی وروولی ناف
څوچه نیت دښهعمل سره جوړ نشي　　عبادت' طاعت دې ږاړهدې خلاف
چه دزړې لار یو ه دژ بړه ئې بله　　په چاړه ئې شه ځیگر شگاف شگاف

بیاورته وایی چه تا په خپل زړه کښې بتان کښېنولی دی او د عفو تاږې شوی یې ' لوبیا داریابی سجده دچا دپارهٔ ده ؟

ځکه نوپښتانه د داسې غولو ونکو خلقو له پیروی څخه را گرزوی او اودشریعت څخه مخالف شیخ ته وایی :

تا په زړه کښې سل خدایان دی کښېنولی
راته وایه سر وچانا په زمین ژدي

دغفلت تسپې پــه روڼ وشپه چــار بــاســې
خومنت بــه پــه کرام الــکــاتــا بېن زدې

کوم وخت چه دبېسو دپاره د کرونه اروی نوپه غوږ وکی کوتــی نیسی
نرې تېرېږی او پښتنو ته همدا توصیه کوی :

کوتی ومنئه پــه غوږ ونرې تېر ېږه
دا کرزرد کرونه کــازده په درم کښې

یا چه پهښکــاره د کرونه کوی او په پټه دخلقو مالونه په دروغو او تیټال خوری
نو خوشحال خان ئې مخ ور نور وی ورته وایی :

دو ویښې دا ده که تل حــلا ل خــورې
که تل حلال خورې بیا دخپل مال خورې
کښېنې وعدې کړې مخ دی خدای تور که
پر دی مالونــه پــه دا تیټا ل خو رې .

څوك چه غوامی حقیقی شېخ شی باید عالم وی ، جاهل شېخ علاوه پردې
چه څوك لارې ته را وستلای نشی دېر خلق گمراه کوی او په ناروا کــارو
أې اخته کوی ، نوځکه خوشحال خان دجاهل شېخ فساد ترعزا زیل نه څه کم
نه بولی ، وایی :

دد ې دور در ویشان خلیفه بس دی
اوس خپل ځانلره بل کــار کــاعزازیله
دا جاهل شېخان شېخان نه دی شیطان دی
چه فساد ئې پیدا کیږی لــه تهلیله
داسی منقلب خلق په څوڅو رنــگه ځانونه ښکاره کوی .

خوشحال خان ئې داسې ښيي :

پلار ئې په بند کړ، ور ورئې بند بند کړ

ځان ئې هم شيخ کړ، هم دانشمند کړ

اوس په غزا کې خپل ځان غازی بولی

په څو خورنگ ئې خپل ځان څر گند کړ

خوشحال خان دې ته حيران دی چه له يوې خوا دا دو مره استغفارو نه اوله بې خوا هونبره گناه ؟ ! توځکه وايی :

آه دا هسو نبره استغفا ره — چه ئې تل کړي په اسحا ره

که رشتيا دا استغفا ر دی — بيا گناه څه گناه کا ره ؟

که دا کار دی په دروغ کړي — شرم و کړه له دې کا ره

هم دروغ کړي هم گناه کړي — نور س دې نشي له قها ره

دا حال چه وينی نومجبورږيژی چه پښتنو ته توصيه وکړی :

هر چرته چه گرزی په لاحوله تري تيرېږه

سل بلا په زړه کښې سل دانې تسپې په غاړه

دا ځکه چه په همدې جامه کښې دوی د خلقو مالونه ولجه کوی ، نو خوشحال خان وايی :

دا تا راج له که شيخان کاندی په ملر

افر يدی نه ذی داهسې تا را جی

صوفی لافې دسلوك کا هم دا لافی

سرا سر گڼه د ده بې منهها بجی

دائې سحر دبا بل دمځکې راوړ

چه درست اوښ په کوت کې رمانده حاجی

صفا ئې دزړه په کار ده نه دږیرې
څو په زیرره ګرزوې شانه عاجې

په آخر کښې د خپل دور دشیخانو څخه بېزاریږی او وایی :

ددې دور د شیخانو حال مې وکوت
چه ساعت ورسره کښېنم ترې بېزارشم

څنګه چه خوشحال خان ددوی داتول ذکرونه دڅو پیسو او څو درمو
دپاره بولی :

ګوتې ومښه په غوز و ترې تېرېږه
تاګرزر ذکرونه کاږه په درم اښې

له دې جهته نوخوشحال وچ زاهدان اوناقص شیخان نه غواړی ' بلکه دده
عارفان په کار دی ' لکه چه وایی :

زاهدان شیخان وهر اوری ته چېر دی
دخوشحال ختك په کار دی عارفان

هغه عارفان غواړی چه هغوی خپلو زړونو ته توجه کړې وی او زړونه
ئې صفا وی داسې نه چه :

| | |
|---|---|
| دصفا په لارې نه ایښې قدم | همیشه له ده در ویشیه وهـه دم |
| هغه کښه شیخ 'ملا 'ولی درویش دی | چه نظر په سود وزیان په هدم ځم |

څنګه ملك ؟ څنګه خان ؟

دروحانی اومذهبی قوې نه وروسته دوې نوری قوې دی چه دوی په مقدرات ولوبې کوی
یوه دخانی اوبله دملکی قوه ده . داد واړه قوې بنایی چه دملك الطوایفی
دوخت نښې وی ' اوددوی منځ کښې دتخریب اوورانی خواته ګرزیدلې دی

دوی چه هرځای پیدا شوی دی. هلته ظلم، تعدی، تفرقه، بی اتفاقی او تجاوز پیدا شوی دی. احتمال لری چه په خانانو یا ملکانو کښی به ښه سړی هم پیدا شوی وی او یا به پیدا شی، خو په رئی پوری یی رواج روان دی او د تخریب خواته ئی مخه شوی ده

دوی بی له ځانه نور هیچانه په حق قایل نه دی، دوی چه د قوم مشران ئی نو خیال کوی چه قوم د دوی د استفادی او د دوی د خدمت او د دوی د ظلم دپاره پیدا شوی دی. نو هرڅه چه ئی دلاسه کیږی خپل قوم خوروی او شکوی ئی، تره ئی او حق ئی ناحقه کوی، بډی او رشوت خیښی اخلی، نو خوشحال هم دوی په دی ستر ګه ګوری چه وایی :

که په کور کښی مال دولت اری ستر ګه ګرزی ملکان ئی تر خانانو د ی مردار
حقه چار به د غز یز کـا ندی ئـا حقه که په بډی رشوت موږی پوډینا ر

د ملکانو سره رشوت خوری تر اپی ده، سود خوری اولو زخر خول خو د دوی له اصلی وظیفو څخه ګڼل کیږی، نو ځکه خوشحال وایی :

د برئی ملکان دی پکښی ښه ملك منه دی
هرچه بی ننګی کا د چابڼ ی رشوت خو ریله

کېږی په مسجد کی د سود و نو کا خبری
یا د خو ر ، د لور د و لور و نود بل کړ ینه

همداشان د خانانو حال خو ګډوی، وایی چه خانی د هرچا کار نه دی او نه خانی دومره اسانه ده چه هرڅوك ئی کولای شی :

و خیا نی، و ته و ر څـنګـلـه هغو هیـڅ نـه
و عیا لـم و تـه بـیـدا کـیږه د ر دسـر

خانی کار د هر چا نه ده د هغه ده
چه سر فه ئی نه په زر وی نه په سر
یکبار ه ئی په نظر کی شرم ننگ وی
د دنیا په سود و زیان نه وی خبر

بل ځای د حقیقی او درست خان اوصاف د اسی ښکاره کوی:

خانان هغه دی چه په خپل نام دی
نه په د نیا دی نه په خپل کام دی
چه په کوم تو کی دقام ښیگړه وی
په هغه فکر کی په صبح شام دی

مګر هغه خانان او ملکان چه دخدای مخلوق ز هیروی او دهغو دژوندله درده غافله وی که څه هم زیری ئی سپینې وی، خو بیاهم دخوشحال په نظر د ئی هلکان معلومیږی، دی وائی:

دغافل په سپینه زیره غلط مشه ‏ ‏ ‏ ‏ دهلك غوندی ئی لا په خوله کی تی دی

که هر څو ئی بو هوم پری نه بو هیږی
زیست روز گار ورسره مه وشه خاروی دی

کوم لوی عیب چه خان او ملك ته منسوب دی او د وی ئی نه پوازی دخوشحال په نظر کی بد کړی، بلکه دتولی جامعی او تول اولس نفرت ځینې کیږی هغه پر بی وزلو اوخوارانو باندی ددوی ظلم دی ، ظلم هم نه یوازی دخان دپاره بلکه دظالمانو د کیتی دپاره ، دڅو پیسو دپارهٔ خواران په ظالمانو تکوی اووهی اوشکوی ئی ، غریب قوم چه ددوی دځان مشران کړی دی ، خو دوی غریبان دځان داسی کشران نه بولی چه دهغو دپاره خدمت و کړی او یاددوی په غریبی ئی زړه وسوځی ، بلکه داسی کشران ئی بولی چه له دوی څخه کار واخلی اودوی دمریونو په شان استعمال کړی ، د دوی ګټلی ځینی په زور واخلی

یائي په خپله وخوری ، یائی نورو ظالمانو ته ور کړی ؛ نو خوشحال خان داستمګرن داسې یادوی :

ستمګر به همیشه په دنیا نه وی — بس له مرګه به لعنت لعنت په ده وی
هسی خونې دظالمی په کار ولاړ دی — نه به وائي مرګ ئې نشته نل به ژوی
ظالمان په نورڅه هیڅ راغلی نه دی — خو دنیا و ته بنو ئېبزی لکه روی
چه دخپلی کامرانی په کار راشی — که عالم ته و بالاشی پری ئې زده وی
په ګفتار کښې فرښتو سره سیالی کا — په کردار کښې شیطانان تری پوری څه وی
که په سول ئې د دنیا مقصود حاصلېږی — دمکې په وره په هم پوری کاسوی
په خپل زوی ، ورور ئې بده نه وی ترلی — دخپل پلار و مرګ ته هم موزی ورغوی
په هغه چاره قلم روغ کا قرآن کښې — په هغه چاره له ورور ه مری سکوی
په رکوع کښې تسبیحات دمال وملك کا
په سجود کښې خپل حشم غواړی که بنه وی

مګر داستمګران سره ددې چه دومره ستم کوی بیا هم خپل ظلم ته ملتفت نه وی او خپلو مظلومانو ته داسې مظاهره کوی چه موبز خوهیڅ نه دی کړی لکه خوشحال خان چه وایی :

هم ئې هیڅ راته پرې نښو دل همواږی — چه داده او سه لا هیڅ نه ئې نتلی

دوی باید دمظلومانو آهونه هیرنه کړی ، د مظلومانو آه به ضرور دظالمانو کورور ان کړی لکه خوشحال چه وائی :

دمظلوم آهو نه کانړی دغره سیځی — ظالمان به آزار ونه چند آخلی

❁ ❁ ❁

نتیجه :

خوشحال خان خو په دی پول ددې ځلور وقواؤ ر نګا رنګ رو لونه چه د پښتنو په مقدرات او اجتماعی ژوند کې ئې لوبو لی د ی راوښودل ، اوس باید

موږ په ډېر دقت دده له افکارو نه نتیجه وا خلو او هغه داده چه دې
خلور وقوتو نو ته یعنې خان، ملك، شیخ او ملاته ډېر ځیر شو او کوم وخت
چه غواړو چه دوی ژموږ په منځ کښې شي نو په انتخاب کښې ئې زښت
ډېر دقت وکړو او ددې دقت مقصد به داوی چه موږ صحیح او درست مشران
ولرو نه دا چه هر لاس ته لاس ورکړو او په پټو سترګو په هر چا
پسې روان شو :

ای بسا ابلیس آدم رو که هست     پس به هر دستی نباید داد دست

ځکه چه اوس هم دا څلور قوې دپښتنو په اجتماعي ژوند کې پوره لاس لري
نو پښتانه باید درست اشخاص له ناقصو څخه جلا کړي . دروغجن او متقلب
او خائن اشخاص دصادقو او رښتینو سړیو سره ګډ نه کړي . ځکه چه دې
اشتباهاتو ډېرو موږ نه غولولي دي چه وروستهٔ بیا خپلو خطاګانو ته ملتفت
شو تېرېږي. خو هغه وخت کار تر کاره تېر او د دوی افسوس ګټه نه ده کړي ،
له دې کبله نو باید پښتانه له دې رنګه اشتباهاتو څخه ځان وژغوري
او دمشر یا رهنما په انتخاب کښې تر حد زیات دقت وکړي ، همدا اشان هغو
بیا غلیو ته چه غواړي د قوم مشران شي دا فکر پکار دی چه خپل قوم
ونه غولوي او دقوم افراد دشخصي فائدې او ګټې دپاره استعمال نه کړي ،
بلکه ځان د قوم خادم وګڼي او د قوم دلوړ ولي فکر وسره وي . دقوم
له منځه جهل ، ناپوهي نفاق او بې اتفاقي او قبیلوي فکر ورك کړي ، دیولوی
قوي پښتون دجوړ ولو خیال وساتي ، ځکه چه د پښتنو اکثره
مشران د ځان ځانۍ په بلا اخته دي او هرڅه یوازې د ځان دشخص دپاره
غواړي او دقبیلو تر منځ دنفاق تخم پاشي او له هغه نه دځان دپاره فایده اخلي

تاسو "کوري"، له کومه وخته چه دا څلور قوتونه د پښتون قوم د مشر نسوب
په کورسي کښېناستلي دي دوی اکثره په دې پرهېزي چه پښتون قوم
ناپوه دی، بایده دوی پوه کړی شي، مګر پوه دي خبري ته چه دی اقدام نه دی کړی
داځکه چه که پښتانه پوه شي نو خپل مشران به په خپله په ډېر دقت وټاکي او په
هر ناپوه پسې به نه ځي، دښه مشراو به مشرتیز به وکړي، او داخبر د دوی
شخصي ګټې ته تاوان رسوي، نو ځکه دوی په خپل قوم کښې نفاق او ناپوهي
قایمه ساتي، خبر نه دي چه دژوند لاره دانه ده او خوشحال خان دوی لــه دې
ځان ځاني او قبیلوي ژوند څخه داسې منع کوي:

چه دې توان رسي په لوی دریاب کښې ګرزه
په ډېله کښې دې زوال وینم نهنګه!

خوشحال خان وائي :

# (۷)
# کار وکړئ بې‌ډایان شئ!

که غواړې پسې وهې په لاس به در شي

چاوې داچه په دریاب کښې ګوهر نشته

لاس او پښې او نور دبدن ټول غړي قدرت انسان ته دکار اوفعالیت دپاره ورکړي دي، که انسان له هیڅ‌ لو غړ یو څخه کار وانه خلي اوخپل ځان کاهلۍ اوتنبلۍ ته وسپاري دې نه‌یوازي له طبعي قانونه څخه مخالفت کوي، بلکه په اجتماعي ژوند کښې داجتماع داو ژو بار دي دالاځکه چه دژوندې نوم پرې یادول د ژوندون دپاره عار باله کېږي، ځکه چه ژوندون عبارت له حرکت، اوخوځېدو اوفعالیت څخه دی - څوك چه نه خوځي، فعالیت او کار نه کوي دهغه اودمړه په منځ کې څه فرق اوتوپېر نشته، نوځکه خوشحال خان پښتنو ته دکار توصیه کوي او بېکارې ورته په بده ستایې دې وائي :

هر ساعت چه پرچا ځی هسې بېکار　　تر هغه نه ز ه لاښه ګڼم بېګار

زنځوران که کاروباره کامعذوردی　　روغ سړی به‌ولی ناست‌ځپل روز ګار

که هیڅ کاروبار دی نه‌وی‌در ته‌وایم　　هسې مه کښېنه بېکاره نا بکار

داخود پښتو متل هم‌دی چه "تر بېکارۍ بېګاری ښه ده" نومعلومېږي چه په پښتنو کی له پخوا څخه بېکاري بده وه، مګر په‌اوس وخت کښې دپښتنو ځینې زلمیان او زاده شته چه خپل وختو نه په لهو‌لعب تېروي اوناجائزې چارې ئې دځان دپاره کار ګرز ولی دي، نوښایې داسې پښتانه دخوشحال په وختو کې هم‌ؤ، چه‌نه ددین وه اونه ددنیا، ځکه نوخوشحال خان داسې پښتانه دټولنې بلابولی اومرګ ئې له خدایه غواړي :

چه نه د دین دی نه د دنیا دی　　هغه که گرزی په کار د چا دی
پرېږده چه ومری جهان تري خلاص شي　　په دا جهان کښي یوه بلا دی

یا لحینو پښتنو ته چه د خپلو غرو څخه هیڅ رنګه کار نه اخلی ' اواوز دي پښي ئي غځولی د دوی ورځ دوني سیوری ته او دڅمی شپه په کوټو او بانډو کي او ورځ ئي پټاوی ته تېروی ' دا سي سپیني خبری کوی :

چه په دواړه وسترګو ړوند په غوږ و کوڼ شوي
لال په حوله غفلت په لاسو پښو هم شل لري

که مونږ په دقت سره کائناتو ته وګورو ' سر بېره پر انسانانو ' نور موجودات هم بې فعالیت او بې کاره نه دي او هر کار چه دقدرت له خوا ور سپارل شوی دهغه په اجرا بوخت دی ' ټول ژوي مجبور دی څو چه ژوندی وی و خوځېږی ' کار و کړی او ځان ته یو آرام ژوند تهیه کړی ؛ که نور آرام ژوندانه وی ' د خپل نس دپاره هم هر ژوی مجبور دی فعالیت و کړی . د دنیا ټولو انسانانو چه تر پښتنو ښه ژوند پیدا کړی دا ټول د کار او فعالیت نتیجه ده او پښتانه چه دومره وروسته پاته دي ' دا د دوی د بېکاری او ناپه ځی ثمر دی ' څوك که کار و نکړی ' زحمتو نه و نه باسی او مشقتونه و نه ګالی ' هغه هیڅ د ښه ژوند خاوند کېدلای نشی ' حتی که حیوانات د خپلې ګېډی دپاره حرکت او هڅه و نه کړی ' یقیناً وږی پاتېږی ' ځکه نو خوشحال خان پښتانه په دې راز پوهوی او ورته وایی :

چه مزری خپلې منګلی نه کا ګیلې　　هو نبر د ندوی څر بې غو ښې ور ته تلې
مرجونا د در مرجان هاله ولیجه کا　　چه قبول کا اندی د بحر خوني چلې
عاشقان چه تر سر تېر شی هله کښېل کا　　د دلبرو پستې خولې لکه بخملې
باز چه والوزی له ځالې هاله ګوری　　د کبکانو ښائیسته ستر ګې کجلې

چه دا ور بخری باد سر ر فیق شی　　بیا هاله کښ په ملګونو لمبې بلې
چه سېلاب دغره دسره نه روان شی　　بیا هاله بیائې بهمنځ دېرې خځلې

هو اخوشحال خان دزحمت ابستلو او کار کولو جدی طرفدار دی او دامشهوره خبره چه « بې زحمته راحت نشته » ډېر ځایونه تکرار وی ، یو ځای وایی :

هر سړی چه محنت نه کا هغه کله راحت مومی
راشه راشه رنځ قبول کړه که ته ګنج غواړې ښه پند دی

بل ځای همدا مفهوم په دېشان بیانوی :

چه محنت په ځان قبول کا راحت مومی
رنج و ګنج سره دواړه دی تړلی

بل ځای وایی :

چه محنت په ځان قبول کا نو راحت شی
چه عارف د مصیبت شی عافیت شی

یا داچه وایی :

چه جنګیالی دی دولت هغه مومی　　چه ننګیالی دی عزت هغه مومی
دا دواړه تو که سره تړلی دی　　خوك چه محنت کا راحت هغه مومی

همدارنګه د کار کولو او زحمت ابستلو ډېرې تو صیې ښتنو ته کوی په تېره بیاد کرهنې او زراعت کار دژوند انه له مهمو کارو څخه بولی اردهقان دحور و میلمه ګڼی او خوك چه د دهقانی ډوډی خوری د هغه مقام تر ظالم پاچا پورته ګڼی ، وایی :

خوك چه ډوډی د دهقانی خوری　　خوا ده د حور ودمېمانی خوری
چه ئې په ظلم خوری داهغه دې زهر شی　　که سا لنو نه د سلطانی خوری

ربښتیا همداده که څوك ددهقان او بزگر مقام ته ملتفت شی په اجتماعی ژوند کی

د ډېر لوړ مقام اوری ، تا سې ځیر شی
دا انسانانو تولې طبقې که غربی دی یا بډایی ،

که شیخ دی یا ملا که کافر دی یا مسلمان ، که ښځې دی یا نر ، پاچاهان دی یا گدایان ، که عاقلان دی یا جاهلان دا ټول د دهقان او بزگر لاس ته گوری او باید دده د زحمتونو ممنون واوسی !! که دهقان کار و نه کړی د دنیا هغه بډایان چه ځان په طلا نلی او یا هغه شاهان چه مملکتونه ئې په فرمان وی ، وږی به پاته شی ځکه چه دا ممکنه ده چه انسان کالی وانه غوندی او لوڅ ژوندی اوسی او یا موټر کې سپور نشی ، پلی خپل ژوند تېر کړی مگر دا هیڅ ممکنه نه ده چه یو انسان په اوږه ژوندو کړی او ښاخه و نه خوری او ژوندی پاته شی ، نو ځکه خوشحال خان گرهنې ته ډېر اهمیت ور کوی او دهقان او کاریگر ترهر چا پورته گڼی ، خوشحال خان لیدل چه پښتانه ډېر وسیع دښتونه او فراخې ځمکې لري ، خو دوی ئې و دانو او ته توجه نه کوله ، دا خولا بلا په پسې دوی به و یا چه مونږ وس نه لرو ، مگر د پښتنو دې بروایه له کبله ددوی ودانې ځمکې ورانېدلې ، ځکه چه هغه وخت پښتانه اکثراً په دهقانۍ شرمېدل ، او اوس هم لا ځینې سادگان شته ، چه د ځمکې آبادول و یا د خپلې ځمکې زارعت ته توجه کول د ځان پوراز کسر شان بولی او داهغه جنابان دی چه په دې غریب ملك کې په زرو جریبو ځمکې لری ، خود سلو جریبو حاصل نه ځینې اخلی ، دا ځکه چه ځمکه باندې ډېره ده علاوه پر دې چه ددوی خرڅ پوره کوی ددې ډېرې ځمکې روزل هم دد وی تر طاقت پور نه دی ، خصوصاً چه روزل ئې ځانته پوراز حقارت هم وگڼی ، نو خوشحال داسې لټو زمیندارانو ته وایی :

تخم شته هم ځمکه هم قلبه لري تیاره
هر اسباب دي جوړ دي ولې نه کړې کار د کر

بل ځای وایي :

پسینه کړله هو نېره فایده نه کا — چه په وخت کړله و کړ بر آخلي
د کر او وخت آخر شو تخم لېږدي — خوار هغه چه ئې له کره لاس خلي

دخوشحال خان په نظریه کاملان احمقان دي ' که دوی پاچاهان هم وي ، ژر به له تخته پرېوزي ' دین او دنیا دهغو دي چه کار کوي ' وایي :

کاملان دي چه احمقان دي — دولت به بایلي که پاچاهان دي
دولت ددین ده نیا د چا دي — چه هښیاران دي په کار چسپان دي

مګر کار کول هم خپلې لارې لري ' خوشحال خان د کار دپاره درې اساسي لارې ټاکلي دي چه حقیقتاً هم ډېرې مهمې او بنیادي لارې دي یوه داچه خوشحال خان وایي ' باید لومړی د کار په ټا کلو کښې فکر او تأمل وشي :

در ته چاوې چه پېرې مه پر انز ده غوښه
تأمل د هر سړی ګره ګشای دي

دوهم وایي چه په کار کښې باید تر اندازې زیات تلوار و نشي ' ځکه چه د کار د ورانۍ سبب ګرزي :

چه ودانې چارې ورانې په ساعت کا
چه مې ولیده په چارو کښې تلوارو

خو دلته ژردې خبرې ته ملتفت کېږي چه ځیني پښتانه خو خدائې هم تمبلان وه داد « نه تلوار » خبره چه هم واوري نو به بېخي تمبلان شي او دا خبره به دځان سند و ګرزوي ' نو ژر بل ځای وایي :

چه دانسته دروم چه آهسته دروم — فتح هغه دوم نصرت هغه دوم
چه کار هلې کا یا په تلوار کا — نامرد هغه نوم نا کس هغه نوم

یعنی نه په کار کښې دومره تلوار چه پوه دان ، کار روان شی او نه دومره کاهلی چه ئې څخی کار یا نه شی ، هم کار باید وشی ، هم باید په سنجش وی .

دومره داخبره کوی ، چه ډیر دغه څوك دی چه کار آغاز کړی نو انجام ئې فرض و گڼي بدبختانه داوس هم داعادت شته چه هر نوی کار په ډیر جوش او خروش شروع کوی ، خو څه موده وروسته ئې پریږدی او پای ته ئې نه رسوو . بیا بل کار ته لاس اچوو . د پښتنو د کارونو نه ترقی کولو مهم او لوی علت هم دا عادت او فکر دی چه هر سړی مر کار بې فکره او بې سنجشه شروع کوی خو چه د کار د مشکلاتو سره مخامخ شی د مقاومت طاقت ئې نه لری ، نو بیرته لاره ئې نیمگـاره پریږدی ــ خوشحال خان غزنی چه دا بد عادت د پښتنو له مغزه ورك کړی ، نو وائي :

| | |
| --- | --- |
| مردان هغه دی چه همت ناك وی | د ننگ په کار کښې چست و چالاك وی |
| کار چه آغاز کا انجام ئې فرض گڼي | په زړه هم پاك وی په خوله هم پاك وی |

حتی خوشحال خان د مطلوب په لاره کښې ورته تر بول هم جائز گڼي په هر قیمت چه وی باید مطلوب ته ځان ورسول شی ، نو وائی :

تر مطلوبه پوری شرط در سیدو دی

که تمامه لار په ویښو شی آلوده

## بهائی او زر پیدا کول :

لکه څنگه چه په ژوند کې د لیچو زور او د علم زور په کار دی همداشان پول زور هم شته چه ډیر ملتونه ئې تر خپلې سلطې لاندې راو ستلی دی او هم ئې راولی . بلکه په ننني دنیا کې څوك چه دا زور نه لری هغه ته ژوندی نه وایی او هغه د ثروت او پیسه زور دی ، په دې ننني عصر کې د هر مملکت ، هرې جامعې یا هر فرد سره چه د اززر شته هغه په خپلو هم عصرو لوړ او هر څوك ورته احتیاج دی ، ننورځ امریکا څه نورسحر ، جادو نه لری

همدا پیسو زور دی چه دځمکی نیمه کوره ئی کړو کړې ده او لاغواړی نوره دنیا هم د دالرو په زور دځان ته کړی. نن په پیسو څه کار نه دی چه نه کیږی ؟! څه انسانان او لوی شخصیتونه دی چه د پیسو د پاره لوبې نه کوی ؟! او څه د ملتو نو ناحقې دعوې نه دی چه په پیسو د سر ته نه کیږی ؟؟ په ننني جهان کښې په پیسو هر څه کیږی که په بده لار صرف شی بدې چارې پرمخ ځی که په ښه لاره ولګیږی ښې نتیجې ښندی. پښتانه چه د اقوت نه لری نو هر چا پاته دی نو خوشحال خان هغه وخت لا د پښتنو دې نقص ته ملتفت و او وېل به ئې :

یاد لیچو زور په کار دی یاد زرو

خوار هغه شه چه په دواړو وی کمزوری

په پښتنو کښې ځینې خلق و چه د پیسو له پلوه به ئې بدراتلله او دا تنقید له دې کبله و چه د پښتنو ځینې بدایان دخپلو پیسو په ځل نه پوهېدل او د پیسو څخه به ئې نه د قوم د پاره او نه د ځان د پاره کومه فائده اخیستله او پیسې به ئې تر مځکې لاندی ښخولې ځکه نو خوشحال خان د زرو اهمیت داسې بیا نوی :

| | |
|---|---|
| خپل پردی رانه په خوله وایی زر زر | وعالم ته تر هر څه دی بهتر زر |
| اوس په دا دور ماولیدل خوازه دی | تر پدر تر برادر تر پسر زر |
| نور و چارو نه څه کورې دا ګوره | چه صاحب د مسلمان کا کافر زر |
| فیروزه الماس یاقوت لعل له کانه | له دریابه نه وکا زی ګوهر زر |
| مځکه څه چه د آسمان ښایست په زر دی | ستوری زر دی آفتاب زر دی قمر زر |

زور قوت حرمت هوری درومی چه زر وی

د پادشاه په سر څوک کښیږدی افسر ؟ زر

ښه ځوانان ئې لیدل نه مومی له ورایه

دنیا مړزه په غیږ کې ور کا دلبر زر

د ګېدړو نوم په خوله څه لره اخلې
د زمري له تنه هم بري کا سر زر
هر مراد چه د سړي وي په دنيا کې
د طلب په وخت ئې ور کا د زر سر زر
نه به دې په لږو زرو نظر وکا
نه به پرېوزې وخوشحال ته غرغر زر

بل ځاى د زرو تولول داسې ضروري ګڼي :

زر په بده ورځ په کار شي　　هو ښيار ځکه ساتي زر
د زردار بلا په زرو　　د نادار بلا په سر
چه سپر وي ګذار په سپر شي　　چه سپر نه وي لاس شي سپر

بل ځاى زر داسې ستائي :

زر دي چه هر چا ته ، اعجاز معلوم کا
معدوم موجود کا ، موجود معدوم کا
وينځه مېرمن کا ، خادم مخدوم کا
زر په سندان کښېږدي سندان هم موم کا

خوشحال خان خو د زرو صفت کوي . مګر زردار او دولتمند ته په ښه سترګه نه ګوري ځکه چه خوشحال خان په زرو يا نمول او بهائي کښې نقص نه ويني ، له زرو نه چه څه نقصان پېښيږي هغه ټول د زردار او بها ي نقصان بولي . « دولت پيدا کول » او « دولت ترسرول » د خوشحال خان په نزد دوې جلا لارې دي ښايي دولت به هر څوک ومومي ، مګر د دولت ترسرول او په سمه لار ، روانول د هر چا کار نه دي ، نو ځکه وايي :

يو دولت نه رسيدل دي　　بل دولت ترسرول دي
دنيا داران سره ګډ وډ شي　　دوا ده توکه د عاقل دي

بسخت خو آس و سړی ور کا ګران د آس تېخل ، ساتل دی
دخوشحال په عقیده هر مشکل او سخت کار په زړو آسانه کېږي ، دا دزړو
هغه خاصیت دی چه انسانان ورته قائل شوی دی ، مګر زړور دار باید پر زړو
ایمان رانه وړی او په مینه ئې کا فرښی دی وایی :

که هر څو مشکل کارونه درته پېښ شی
فکر مه کړه چه آسان نه په زړ شی
ما چه ولیده خو زړ دی په دنیا کښې
خو سړی دی ئې په مینه کا فرښی

هغه زړه اراو بهای چه فقط پیسې تولول ئې غرض وی او یوازی په پیسوئې
ایمان راوړی وی ، نه ئې په ځان خوری ، نه ئې دل چا نه ور کوی او نه ئې دملت ،
قوم ، کورنۍ او همسایه دفائدې دپاره صرفوی . خوشحال خان ددې زر دار
دسر دښمن دی او داسې ورته وایی :

دد نیا د سو دد پاره کوڼ او کوړ ه
څه خو شرم مړ و توته و ګوره
په درست عمر هغه ځای ور پسې غواړې
چه دې پر یوزی له پلو د چیر ته توره
په زړه کې باندې دې توره سوی داغ شی
چه دې توره یا پیسه روزی له ګوره
دلوی غره کندې په تا باندې پر یوزی
چه د ګوره دی ډوډه وزی نان کوره

ددنیا مینه په تا باندې دریاب شوه
ته په دا دریاب کې ډوب لاړې هر ګوره

بلکه خوشحال خان داسې دولتمند او زردار غواړی چه خپل ځان ، خپلې کورنۍ ،
خپل همسایه ، خپل کلی ، خپل قوم او خپل وطن ته ئې خیر ورسېږی ، او دخپلې

بلکه دخوشحال خان په نظر کې هغه خوانده چه څوك دمېلمه سره نه خوري او همېشه دښځو سره ناست وي هم بد ګڼي ، وايي :

هغه د ګ طباخ په سپي خوړل ښه دی
چه تر څنګه ئې دمېلمو رتو پرسو پرو خوري

یوازې ثروت پیدا کول یا زر غونډول کمال نه دی د ثروت او زرو صرفول ځان ته هنر لري همدا شان د مال خوړل او ساتل ځان ته هنر و نه شته چه هر زردار او ثروت مند پرې خبر نه دی ، دا دخوشحال فکر دی چه وايي :

لکه ګټنه د مال هنر لري    هسې خوړنه د مال هنر لري
لکه بازنه د مال هنر لري    هسې ساتنه د مال هنر لري

خوشحال خان د انسان او حیوان فرق په دې کې بولي چه انسان خپله سرمایه او ثروت د انساني منافعو د پاره صرفولای شي او حیوان په دې نه پوهېږي او څنګه وايي .

که په خره بار دی د زرو صندوق بار کړي    خر به هېڅ په دا پوه نشي خر څو خر وي

د دنیا مال یوازې د دې وسیله ده چه انسان د نیکو نوم پرې وګټي او یا چاته خیر په ور سوی او یا د وطن او قوم د خدمت په لاره کې ئې صرف کړي او له دې لارې د نیك نامه خاوند شي ، خوشحال څه ښه وايي :

د دنیا په مال د نیکو نوم حاصل کړه
تل جهان و چاته نه پرېږدی ما اوره

خوشحال خان د اسې مال غواړي چه ځای ئې تر ژوند پورته وي ، د اسې مال نه غواړي چه ځای ئې تر ژوند کښته وي ، وايي :

هسې مال راته کړه چه ئې ځای وی تر ژوره کښته
هسې اموال را کړه چه ئې ځای د ژوند د پاسه

خوشحال خان دنیا د دې د پاره غواړي چه بل محتاج ته ئې خیر ورسېږي ،

د دې دپاره ئې نه غواړي چه د مېږي يا موږک په شان ئې خپلې سوړې ته يوسي ، دی وايي :

چه وهل خوړل خو روڼ کا هغه باز دی يا شاهين دی
چه ئې سوړې ته وړي هغه يا مېږی دی يا فاره

د خوشحال خان لاس نه رسېږي که نه ده به نو له دنيا نه زلې وړای :

څه کړم لاس و دست مې نشته قلندر يم
ګنه ما به د دنيا وېاز له کاله

مګر سره د دې چه لاس ئې نشته دی سترګې ئې مړې دی چه وايي :

که مې لاس لکه درباب له در و نشته دی
ولې سترګې مې درباب غوندې دی سپړې

په دې نکته کښې د خوشحال غرض د خان صفت نه دی ، بلکه غواړي پښتنو ته د لوړ همت درس ور کړي او دوی د طمع او حرص د بدو خصلتو نه خبرداره او ګرځوي ، نه به دا زې هغه څوک چه محتاج وی له دې بدو خويونو څخه منع کړي بلکه هغه څوک چه پيسې او ثروت لري تر غريب ډېر دې نصيحت ته اړ دی ، او بدبختانه د ځينو انسانانو چه هر څومره پيسې او ثروت ډېرېږي په هم هغه اندازه ئې طمع او حرص هم ور سره زياتېږي ، نو ځکه خوشحال وايي :

مړه هم هغه ګڼه چه زړه ئې مړ دوی — سترګې مړې اری که زر که ډېر دوی
له ډېر دولت لري چه طمع خواست کا — د ګدائي نو کار ته جوړ دوی

نو ځکه خوشحال دغسې بډائي چه له ګدائي سره برابره وی نه غواړي او پښتنو ته خپل ځان نمونه ګوی وايي :

زر زما تر لاسه نه راځي وېرېږي — که هر څو مې د لاسه ور سره ګېږي
زما لاس ور ته تر اوره هم بتر شو — لا پيدا ور کښې ئې پوره نګ ساعت نه پرېږي
زه او زر سره له ځايه غلمان يو — په جهان کښې غلمان سره د غېږي ؟

چه زرلری په کور کښې                ښه ها له شي سردا ری

دوستي ئې بده چـار ده                بده لـه ده زر دا ری

بل ځای وائي :

اوس په سپینه زیره زرغواړه خوشحاله                که په زړه لري دعوې د سرداري

داچه دی وائي زه زر په خپل لاس کښې نه پریږدم هم ئې غرض دا نه دی چه بې لاري اوبې ځایه باید ثروت یا پیسې صرف شي، بلکه خوشحال خان خپل دولت دلورو دآرامي دپاره غواړي اودا دهر حساس او بیدار دولتمن وجداني وظیفه ده، دی وائي :

لا بـه کله مغه ګنج ور کړي بختـه !

چه خوشحال به ئې په پلو په سپرو خوری

داخکه ماوویل چه خوشحال خان داسراف او بې ځایه خرڅولو فدار نه دی بلکه چه بې ځایه مصرفونه اکثراً یاد فیشن دپاره وي او یا د بې ځایه عیش وعشرت دپاره مګر خوشحال له دې دواړو مخالف دی وائي :

دمن داتو دخپل شرم کـا رو بـار دی

نور ئې هر څه له خـاطـره فرا موش دی

د زنـا نـو پـه حساب دي هر ځان مځه

چه لـه زیبه لـه زینته هـم آغوش دی

شړی ور پښتون به سل یه د کـه پوسی

کشمیري چه ښو ګشالونه ئې په دوش دی

خوشحال خان د پیسو سره هنر او پوهه غواړي او دپیسو لګن هم باید د پوهې له لارې وي، که دانه وي نو نه دچا مال ته ګوري اونه دچاذات او حسن ته، دی وائي :

چه شرم ننګ ئې نه وي نه هنر لري نه پوهه

په مال ئې نظر مه کړه مه په حسن مه په ذات

په دې ترتیب سره خوشحال خان د کار اوزار وخت او لګښت پسای ته رسوی

نتیجه :

له دې برخې څخه موږ دا نتیجې احستلای شو :

۱: - پښتانه باید کار وکړی څو پیسې پیدا کړی او بې ابان شی.

۲:- چه پیسې ئې پیدا کړې هغه به تر ضرورت نه لاندې کوی اونه به ئې ځای پر ځای دروی، چلوی به ئې څو ګټه وکړی.

۳:- ګټه به ئې هم په خپله خوری، هم به ئې قوم ته ورکوی او هم به ئې د وطن دودانۍ د پاره صرفوی.

۴:- پیسو او بډائی ته به په بده سترګه نه ګوری، مګر البته پیسې به وسیله وی نه غایه، پیسې او بډائی به د ژوند د پاره غواړی، نه ژوند د پیسو غونډولو د پاره.

۵:- پیسې او بډائی بې له زحمت اېستلو او بې له کار کولو څخه په بل ډول نه پیدا کیږی که پیدا شی، بقا نه لری، خو د کار په باب کې پښتنو ته وائی :

که غواړې پیسې وهې په لاس به درشی
چا وې دا چه په دریاب کې ګوهر نشته

........ ••••◆◆◆•••........

خوشحال وايي :

# (۸)

# د ښځو حق ورېژني؟!

پښتني جونه مې وليدې په ستر ګو
څوك چه ترکې د خطا ستايي خطا دي

خوشحال خان خو د خطا تر ترکو هم پښتني نجونې لوړې ستايي، مګر ايا اوس پښتانه هم په دې عقيده دي ؟!

ښايي چه پخوانۍ ښځې نه به وو، مګر اوسنيو پښتنو ته چه ګورو نو يوازې په دې عقيده نه دي، بلکه پښتنو نجونو او ميرمنو ته په ډېره بده ستر ګه او د حقارت په نظر ګوري. پښتانه ورته داسې نه په قاريږي. که دوی خپلو هغو اعمالو او جبراً په دوی ته نظر وکړي، چه دوی د دې بې ارزښته طبقې په حق کې يې مرتکب کېږي، نو هغه وخت به په خپله تصديق وکړي چه د دنيا په انسانانو کې يوازې پښتون قوم دی چه په اوسني عصر کې د دې طبقې مشروع حق پايمالوي او هغه حق چه قدرت، انسانيت، اسلاميت دوی ته قايل شوی دی، په خورا سنګدلۍ له دوی څخه ګرځوي.

پښتنو! راشئ سر ګريوان ته کړئ، وګورو چه موږ د خپلو ښځو سره څه وضعيت کوو؟

نجونې په زېږېدو خوا بدې کېږو، چه نجونې لږ څه لويې شوه ( سره د دې چه د خدای رسول راته فرمايلي چه « العلم فريضة على كل مسلم ومسلمة » او علم يې په هر نر او ښځه فرض بللی ) بيا يې هم موږ د پوهې او علم له لارې را ګرځوو، دارا ته په ډېره ښکاره چه زموږ نجونې د ګاواله له ښځې څخه اوسته ولولي، او بې غيرتي يې بولو، مګر په دې هيڅ غيرت نه راځي چه په نجونو غوا بيايو او خره يې څروو ؟!

هغه کار چه خدای فرض کړی دی نه کوو، او هغه چه خدای نه دی فرض کړی کوو؟! ځوانې موږ علماء نا پوهې اودږوند له کارو او اصولو بې خبره لوئې شی، علم لا څه چه د خپلو کالو ګنډل او پاك ساتل ئې هم زده نه وی؟ چه پېغلې شې او د مړوښې وخت ئې راشی، نو ئې د حیوانانو په څېر خرڅو، خدای (ج) وائی چه په مړوښې او ازدواج کښې د نر او ښځې رضا شرط ده مګر اکثره پښتانه بې له دې چه د پېغلې څخه پوښتنه هم وکړی او یا د هغې خواری راتلونکی ژوند ته فکر وکړی پر خپل سر ئې د غوا یا خرې په شان خرڅوی؟! کله شکې په دې بې رضائی کښې هم د خپلې خور، لور د راتلونکی ژوند خیال ورسره وی؟! د هغې خیال چېرته دی، خو یوازې د خپلې ګېډې او جیب غم ورسره وی چه د خویندو او لونړو په غوښو ځانونه ماړه کړی. دا فکر د دوی سترګې داسې ړندې کړی چه نور ئې نو نه اسلامیت په یاد وی او نه د انسانیت څه اندېښنه ورسره وی، چه پیسې ئې ګورته راشی، نو د څو ورځو کلو ځلې له کوره باسی او د ښېټو کلو بوډا په کور ئې ننه باسی دا ځای دی چه خوشحال خان د پښتنو دا ظلم او د هغو بوډا ګانو دا قباحت او نا پوهی چه ځوانې ښځې کوی په ډېر بد نظر ګوری او دا چه ځنې نا پوه سپین ږیری خیال کوی ځوانې ځوانې به د پیسو او ثروت په زور د ځان کړی غلطه ثابتوی، هو! زاړه بوډا ګان د زرو په زور ځنې اخیستلی شی مګر د ځان کولای ئې نشی، د خوشحال خان په عقیده که زوړ سړی پاچا هم وی خو د ځوانې پېغلې نه ورسره لګی، دی څه ښه وائی:

چه په سپینه ږیره ګاځوانې نګاری
په خپل ځان باندې پېښر کاځنې چاری
که په خوله د زاړه یار ترسر جار پېژی
په زړه نه وی ځوانې هیڅ د زاړه یاری

نېك وبد په داجهان کښې پيدا کېږی

نېك و بدې دزاړه نه دی ورېزاری

خوښه ځوان دځوانی ښځې په غرض وی

که پا دشاه وی دزاړه نه دی ازاری

اوس په خپلو زړو خوښ اوسه خوشحاله

دا ددور ځوانی مکړه نا په ککارې

هغه بوډا ګان اوسپين زيری چه دپېغلواوځوانو ښځو دغولولو دپاره زيری پهرنګ توروی اويائې رنګوی دخوشحال په نظر په اوی احمقان دی' تر دې کار دی زيری خريل او کلول ښه ګڼی اسکه چه وايی :

د خضاب ځوانی دچاده داحمق ده

تر دا کله زيره ښه په ښه نائی ده

لنډه داچه خوشحال خان ددی خبرې سخت مخالف دی چه سپين زيری سړی ځوانی وکړی' دی وايی :

| | |
|---|---|
| هرڅوك چه چن کار په سپينه زيره | هر سپين و پښتنه ئی تيره نر تيره |
| د هغې جنې دی تر زده وتلی | درته مې ووې واوره په ځيره |

بل ځای وايی :

سړی چه ځوان وی د نجونو خان ډی

زړه ئې په خندګ لېبی لکه سوهان وی

زاړه له ښه کا نجونې دې نه کا

جن دې هله کا که دی سلطان وی

خو شحال خان چه داوصيتونه کوی پهدې وخت کې دی په خپله هم سپين زيری دی او خپل ځان هم له دې قبيح کار څخه داسې منع کوی :

اوس دنجونو هوس مه کوه خوشحاله !

پښتنې نجونه تر هېږی له د وه مو په

خوشحال خان چه زوړ شوی دی، د ځوانۍ هوسونه د ځان سره وړنه ګڼي اودا نه یوازی ځانته وایی، بلکه د هر سپین ږیري د پاره د عبرت درس دی چه وایی:

که ښې ښې نجونه کښه لباسونه دی   کښه بازونه که ښه آسونه دي
خوشحاله زوړ شوې اوس دا هوس مکړه
د ښو ځوانانو دا هوسونه دي

مګر دا خو هاله کېږي چه څوک د خوشحال خان خبره ته غوږ کېږدي حال دا چه ځني ساده ګان پښتانه داوړ او خوړ ځولو په کار کې د خدای او د رسول قول ته غوږ نږدي خوشحال خان او ده لا څوک يو ؟ خو بیا هم ویل د خوشحال وظیفه ده او اوریدل د پښتنو، نو هر څوک به خپله وظیفه ادا کوي .

د ښځو په سر یو ازې دا غم نه دي، بیا چه د مېړه کور ته ورسي لاسل غمونه نور نوی شي، دوه کاله پس دوې بنې پیدا کړي، ځکه چه دا خود پښتنو خصوصاً د مېرا یا نو پښتنو یو جنوني هوس دی چه ضرور به څلور ښځې پوره کوي دا هغه ځای دی چه د پښتنو خانان او مېرا یان د قرآن په نیم آیت عمل کوي او نیم ئې د سره اوري نه وایی چه خدای څلور ښځې را ته روا کړي، مګر دا نه وایی چه د ښځو تر منځ عدالت هم فرض شوی دی که پښتانه خانان او مېرا یان وایی چه مونږ عدالت کوو، دا نو یوه داسې خبره ده چه هیڅوک ئې باور کولای نشي. ایا د دن د نساوې او دوه کاله د مخې ښځې ته یو شانک پوشان ور کوي ؟ ایا په برابر نوبت د ډو او ښځو کور ته ورځي ؟ ایا زړه ښځه شړلې غوندې نه ګڼي ؟ ایا د پر مېرا یان داسې نه وي چه نوې ښځه راولي زړه له کوره باسي ؟ ایا دیوې ښځې د وړو د بلې تر لاس نه وي ؟ ایا یوه سیاه بخته بله سعید بخته نه بولي ؟

د الاخره چه یه ښځې داسې قیدونه زدي چه نه یوازې په اسلام کې

روانه دي بلکه کفر هم په بده سترګه ورته ګوري، ډېر معتبر پښتانه خپله ښځه د ښځې د پلار کره هم نه پرېږدي او دوی خیال داوی چه ښځه له کوره وو تله ضرور فاحشه کېږي حال داچه د ښځې ښه والي او بد والي د کور په وتو پوري څه اړه نه لري، ډېرې ښځې دي چه په کورو کښې بدېږي او ډېرې پښتنې کوچیانې دي چه پر دښتو پاکلمنې دي، خوشحال خان د پا کدامنې ښځې په باب کښې څنګه ښه ویلي دي :

که ګېله په بازار شي په کو څه کوڅه جاروزي
د پا کو پا کدا منو ستر جوړ دی ربا نی

چه پا که پا کدا منه په حیا په دین مینه
د مرد په کور کې کښېني مرد دی کاندی کامرانی

بالعکس د بدې ښځې په باب کښې وايي چه که په دېوالونو کښې هم حصار کړه شي بیا به لاهم خپله بدي ښکاره کوي، وائي :

سپي چه سپیه‌شي سپي خپل ځان اره پیدا کا
څه سود که بده ښځه په دېوال کړې زندا نی

ښه او بد هم په نارینه او هم په ښځو کې شته نو لکه چه له یوې مخې تولې ښځې یا تول نر بد ګڼل غلط دی همداراز تول نر ښه ګڼل او تو لې ښځې بدې شمېرل ظلم او له انسانیته لرې خبره ده، پخوانی پښتانه داسې نه و، همو ښځو ته په خورا درنه سترګه کتل، د خوندو او لونو غوښې یعني واوروونه ئې نه خوړل ظلمونه ئې نه باندې کول، حتی د ښځو «پلو» په پخوانیو پښتنو کښې ډېر قدرمن و، چه د دوو قبیلو په جنګونو کوم وخت چه به د ښځې پلو منځ ته راغی، جنګ ختمېده حتی بدکارو غلو لاهم د ښځې احترام ساته، په هغه قافله کښې چه به ښځه وه په هغې تولې قافلې ئې غرض نه کاوه نیرو پښتنو ښځه د کور څراغ بلله او د کور بدبختی او نیک بختی ئې ددې په پلو پورې تړلې ګڼله،

لکه چه په دې مثل کاوه چه «یا نیک پلو یا نیک چلو !» دوی به په ښځو کښې صفاتو متصفه ښځه مېړمن ګڼله، چه خوشحال خان داصفتونه داسې بیانوی :

ښځه بویه هسې ښه کښې خندونه به مهر جنه
یا کېږه په زیست روزګار کښې یه ښه بوی باندې میینه

دمحبت په رموز پوهه، زده ئې خلاص له مکره دروغه
کم خوړا که، خوش پوشاکه، همیشه ناسته دننه

له نیکانو هم نشینه، له بدانو په زړه خسو دی ښه
له مور والی ئې توبه کا، که ئې موډوی درو غجنه

دمېلمه په کار حاضره، په پخوالی بېها دره
حق د چارې په ځای راوړی، په رنځور باندې پوښتنه

یا کېږه ئې د کور صحن، نه په غولی کښې نور لحن
پرستاري ترې خوشنود دي ښه دهر چارې ستا ننه

که داهسې څوک پیدا شی، دخوشحال په لاسو راشی
هیڅ تقصیر به ئې ونه کا دیاری ئې په بیا ننه

خوشحال خان خوددې ښځو مېړمنو باری یاله، مګر اوسنی ځنې ښځانه یاری لاځه چه که څه هم داسې صحیح مېړمنې ئې په کور کښې وی دسره په وزین تندی لاور نه ګوری هم نه :

خودا ښځانه باید ویش شی، دنیاته وګوری، په اوسنی دنیا کښې ښځې دنرو ملګرې وی او په ډېرو کارو کې دنرو سره اوږه په اوږه ولاړې وی کار کوی دانسانانو اجتماعی ژوندنرو او ښځو دواړو ته اړدی ښځه اونرلکه نور اوحرارت لازم اوملزوم دی هیڅ سره جلا کېدلای نشی که ښځې دنرو سره ملګری ونه کړی نرپه هیڅ کار کې کامیاب کېدلای نشی همدا سبب دی چه خدای تعالی جل شانه په قرآن کریم کې فرمایلی دی :

« هن لباس لکم او انتم لباس لهن » (ښځې ستاسې لباس دی او تاسې دښځو لباس یئ ) لهٔدې آيته څخه دښځې اونړیو بل ته ضرورت ډېر ښه واضح څرګندېږی امید شته چه پښتانه بههمدې طبقې ته دقدر پهسترګه وګوری ، ددوی ترقۍ تهبه توجه وکړی ، علمی سویهبهئې اوده کړیاو په ژوند کښې بهئې دځان ملګرې وګڼی ، داور ، خور دخر څولو اوپه جبر ور کولو څخه بهلاس واخلی ، اوپه آخر کې بهدښځو هغه مشروع حق ور کړی چهاسلامیت انسانیت او مدنیت ورته قائل شوی دی اونوره به نودا طبقه همداسې مظلومه اوبې وزلې نه پرېږدی ، کهٔدوی هغه خدای بهچه ښځو تهٔئې حق ور کړی دحشر پهورځ له پښتنو څخه ددوی په وجه سخت باز خواست وکړی .

نو اې پښتنو ! دخوشحال خان خبره ومنئ چه وا یی :

« دښځو حق وپېژنیء ! »

• • • ◆◆◆ • • •

خوشحال وایي :

# (۹)

# خپله ژبه مه هېروئ!

که تازي ژبه هر گوره ښه ده　　پارسي هم ډېره په خوند خوږه ده

چا ئې پلو د جمال وانه خیست　　پښتو لا هسې پکړه پرته ده

بو خوك چه ځان پښتون گڼي او یاد پښتنولۍ دعوه کوي، خو د پښتو سره علاقه نه لري دا ډېر د شرم او پېغور ځای دی او که ئې پښتو زده نه وي. دا خو د مرگ او پېټ خبره ده. ځکه چه په دنیا کې هر قوم په خپله ژبه پېژاندل کېږي، دیوه انگریز که انگریزي ژبه نه وي زده هغه ته به څوك انگریز وواېي؟ همداشان که څوك پښتون پښتو زده نه وي نو څوك به ورته پښتون ووائي؟ بلکه پښتنو اله خو د انسانیت د پر مزایا او ښېگڼې چه دیوه کامل انسان دپاره دي، د «پښتو» تر عنوان لاندې راولي، او کوم پښتون ته چه دوی ووېل شي «ته پښتو نه لرې» یا «بې پښتو سړی یې!» گویا له ده څخه د انسانیت ټول اوصاف او مزایا واخستل شول، دا د پښتنوالي قانون دی، نو د کوم چه پښتو زده نه وي، او ره دنیا ورته پښتون ویلای شي،

ځکه نو خوشحال خان پښتون قوم دپاره دا خبره ډېره ضروري بللې ده چه خپله ژبه به ئې هم زده وي او هم به ئې روزي، دی وایي چه د پښتون خپله پښتو نه وي زده نو هغه ته پوه دي چه دبل ژبه زده کوي: ده ځینې پښتانه لیدل چه هغه لو تر اثر لاندې راغلي او غوښته ئې څو ترکي کلمې زده کړي دي هغوی دا سې تشبیه کوي، ورنه وایي :

چه په خپله افغاني ژبه نادان دي　　په ترکي خبرې څه وايي افغان ته

د هغه وخت ځینو پښتنو بیا د عربی ژبې سره دومره مینه او علاقه ښکاره کړه ولې چه
پښتو ئې هډو هېره کړې وه حتی سمې خبرې ئې نه غوښتلې چه په پښتو ئې وکړی،
خصوصاً خطیبانو صاحبانو او مذهبی مبلغانو چه دا دستور تر اوسه هم په اکثرو
ځایو او جامع ګانو کې جاری دی، البته عربی زمونږ د دین ژبه ده، مګر
د یوه مبلغ یا یو خطیب غایه او مقصد خو د خلقو پوهول او عامو خلقو ته لار
ښودل دی، او عوام خلق خو په عربی نه پوهېږی کلمات اروی مګر په مفهوم
ئې خبر نه دی چه خطیب صاحب څه فرمایی؟ خوشحال خان هم دې خبرې ته ګوته نیولې
کړې دی، او وایی:

ته چه ما ته عربی خبرې وایې    د عربو ژبه څه زده مه عجمی؟

ځینو پښتنو بیا د پارسی ژبه دخان کړې ده، چه حتی په سلطنتی دربارو کې
ئې هم لوړ مقام او د خوادې پښتو ځای نیولی ؤ او د پارسی ژبې په خدمت
دومره لګیا وه چه پښتو ځینې بیخی یاته شوې وه، خوشحال خان په عین حال
کې چه د پارسی یا عربی مخالفت نه کوی او د واړه ژبې ډېرې ښې ستائی،
د پښتو د کم التفاتی څخه چه خپلې ژبې ته ئې لری شکایت کوی، وایی:

که تازی ژبه هر ګوره ښه ده    پارسی هم ډېره په خوند خوږه ده

چا ئې پلو د جمال وا نه خیست    پښتو لا هسې پېغله پرته ده

دا ځکه چه خوشحال خان پوهېده، چه نوری ژبې ځکه ته خدمتګاران لری
نو لازمه ده چه پښتون لومړی د خپلې ژبې خدمت وکړی او ژوندی ئې کړی
باید اوس نو پښتو ته موقع ورکړه شی چه دا هم د دنیا د نورو ژوندیو ژبو مرتبې او
مقام ته ورسولی شی، خوشحال خان هم دا نکته درک کړې ده چه وایی:

پارسی شعر مې هم زده سلیقه لرم د دواړو
پښتو شعر مې خوښ شو هر څوک خپل ګڼی ښاغلی

پښتو ژبه مشکله ده دې بحر هسو نه دی اشنی

هم ما لره به څو بحره په ډېر منږود راغلی

دانا به پرې پوهېږی دانا پوهه کار پری ښته

دا در چه د بیان په تار خوشحال خټک پېیلی

کذاب دی که دا شعر لکه ده پښتو بیان کړ

که هسې وبل اوس شی بیا پخوا دی چا ویلی

بل ځای په خپلو پښتو اشعارو داسې فخر کوی :

په پاسی ژبه که نور نرما بهتر دی

د پښتو ژبه هسې مه غواړه مثال

بیا دا چه :

د پښتو ژبې ئې ډېره خوبی ور کړه

چه خوشحال کا په پښتو شعر آغاز

بیا دا :

د خوشحال خټک په ژبه بر کت شه

چه وبل کا به پښتو لسه هرڅ باسه

مگر په عین زمان کې داې پروا پښتنو څخه ډېر گله من دی چه دوی

خپلې ژبې ته نو جه نه کوی او په خپله پښتو نه پوهېږی ، دی وائی :

که زما ژبه پښتو ده — به پښتنو ا بهم خبری

بو پښتون را نه ښکا ر نږی — چه پرې پوه شی نژدې لری

په خوږ والي کې ئې فرق دی　　ښه تر ګوره دی شکری

ګبینه اری مچیه　　د نیکی اری ښېری

له یوه د ربا به خېژی　　هر غېچېچې مېږ غلری

تفاوت ئې تر منځ د پردی　　په قیمت دی سره اری

په دې دول د پښتو خوږ والی پای ته رسوی او له دی تولو څخه د خوشحال خان غرنی همدا یوه جمله د ه چه پښتنو ته وایی :

« خپله ژبه مه هېر وی »

……◆◆◆……

د خوشحال خان قبر چه په کابل کښې د پښتو ټولنې له خوا د افغانستان
د ښکلو ډبرو څخه جوړ شوېدی چه دوه کاله دمخه هلته د خوشحال خان
پر هدیره ښودل شوېدی .

# د «بینوا» نور چاپ شوی آثار:

۱ــ میرویس نیکه: دهوتکو د شهنشاهی دمؤسس دژوند حالات او واقعات،

۲ــ پښتنې میرمنې: د افغانستان د نومیالیو میرمنو تذکره.

۳ــ ادبی فنون: دالاندی علوم په پښتو بیان شوی او تطبیق شوی دی: بدیع بیان، معانی، دلیکنې اصول، خطابه، قافیه، عروض.

٤ــ چند آهنگ ملی: په فارسی ژبه د پښتو څو آهنګونه سره د نوتونو ــ چه هر آهنګ په نوی عصری اصولو سم ور سره نوټ هم لری،

٥ــ د غمو وزی: دا یوه منظومه رساله ده چه د اعلیحضرت احمد شاه بابا د تاج پوشۍ منظره تصویر شوې ده.

٦ــ د دار مستتر پښتو خبرې: (د حبیبی په مرسته)

۷ــ م کیتان جلي ترجمه: دا کتاب د هند د مشهور فیلسوف تاګور ادبی کتاب دی چه له اردو ژبی څخه ترجمه شوی او په انیس کی چاپ شوی دی.

۸ــ د پښتو کلی څلرم ټولګ: دا د پښتو پرلتس د سلسلې څلرم کتاب دی.

۹ــ د پیر محمد کاکړ د دیوان تدوین، تصحیح او مقابله.

۱۰ــ د رحمن بابا د دیوان تدوین، تصحیح او مقابله.

۱۱ــ نظری په پښتونستان: یوه وړه پښتو رساله ده چه په دې کښې لنډ ډول ټول پښتونستان معرفی کړی دی.

۱۲ــ د اقبال د مسافر ترجمه: د علامه اقبال د مسافر کتاب په پښتو نظم ترجمه شوی او په انیس کې چاپ شوی دی،

۱۳ــ پښتونستان ــ د پښتونستان د معرفۍ په باب کی مفصل کتاب دی چه اوس تر چاپ لاندی دی.

که توفیق د اتفاق پښتانه مومي
زوړ خوشحال به دوباره شي پیدا ځوان

«خوشحال خټک»

د پښتو ټولني له خوا نشر شوه



۵۰۰ ټوکه

